# دیباچه

عبدالرحمٰن بابا د مهمند د خوشحال خان خټک په شان سردار او چرته د یو علاقې خان نه وه. بلکه یو غریب مُلا وه مګر زړه ئې بادشاه وو ځکه د مینې نه ډک وو نه ئې د عالمګیر پرواه لرله او نه ئې د شاه جهان بادشاهي خاني پکار وه. د هغه هم دا سودا وه چې

زه د یار په درد و غم کښې غرقاب خوښ یم
په دې اور کښې بې طاقته بې تاب خوښ یم

او هر کله چې دې په یو غریب خاندان کښې پیدا شوې وو د دې وجې نه د ده ابتدائي ژوند هم ډیر کم معلومیږي شي. هم دغه یو دیوان دې چې د ده په خوار و زار یو ځنې کړیدې څه نور څه جنګي کارنامې یا بل څه غټ معلومات د ده نه وو چې تواریخو کښې ذکر شوې دې، صرف یو د مینې ډکه شاعري ور سره وه چې د پر روستو ئې قدر او ښود او هغه او پیژندې شو چې د هغه زړه په وینو د هزار خواني ته مخ نخ په او چو در یو کښې اغزي زرغون شویدي د هغه د مرګ نه وروستو د پیښور نه چې کوهاټ ته ځي په شور نخه میله باندې د مهمند و په علاقه کښې بوګلې دې چې نو مرې په هغه در کښې دې د مینې او محبت په کتارو زخمي عبدالرحمٰن بابا په دې کلي کښې پیدا شوې وو په کوم تاریخ چې دې ورته یوزي هغه ته ابراهیم خیل وئیلې شي او بعضې وائي چې غوریا خیل دې دا یقیني ده چې دې یو قابل مُلا وو پرون او سر ملانه وو بلکه ژوندې او بې مُلا وو د هر کال هار د سپرلي نه پیژندې شي. دې ځکه ون وو چې ککړتو په ځانګه به ئې اغزي خوښول او د خندا په ځانګه به ئې ژړا خوښوله. د دنیا سره ئې ډیر کم تعلق وو د ده یو خیال وو چې د زړه غم خوراک دې او هم دا سامعان ورسره وو چې آخر دې په چشتیه خاندانې باندې مجبور کړو. دا نه ده معلومه چې ده لاس نیوه د چا نه کړې ده مګر دا یقیني خبره ده چې دې په چشتیه طریقه کښې د حضرت خواجه معین الدین چشتي اجمیری رحمة الله علیه کښې داخل شوې دې. اول ده دې نه به ده سرود او ریدلو او آخر پرې د ومره استغراق غالب شه چې موږ ترې پاتې شو او د پښتو په اصطلاح کښې د مُلا عبدالرحمٰن نه یو مستک جوړ شو. وائي چې شپه درځ به ئې ده او ژړا به ئې وه ترڅې حدې پورې چې او ښکو ئې په مخ باندې لارې جوړې کړې خداوند کریم ورله یو خوبیارانه هم

ورکړی ؤ چه دهٔ به څه ویل نو هغوی به لیکل او دا د هغه یارانو برکت دے چه د عبدالرحمن
د زړهٔ قطرے په هره حجره کښې په ډیرو سرو پړتے دی او خوارهٔ اشعار هم د هغه زمانے دی.

ستا له غمه زم په ځغ باندے وړے ځی          ولے نه پوښتے له ما نه چه ولے ځی

چونکه د پښتون فطرت آزاد دے له دے وجے نه هر قسم آزادی په هر صورت چه وی
دوی ورسره ډیره ښه لګی او مسنګ یو داسے لفظ دے چه په چاپورے شی د پښتون په
زړهٔ د هغهٔ ځائے پیدا شی. نو عبدالرحمن اګرچه ملا ؤ مګر زړهٔ ئے د تنګ نظرانو وو.
دے وجے نه د هر پښتون زړه په زړهٔ کښې خوښ شو او ډیر عزت ئے پیدا شو ملایان چه یوه
زده وره طائفه ده هغو عبدالرحمن ته دا خبره وړاندې کړه چه دا سرود او ربیدل او مخالف
کارونه پریږده او په شریعت باندے چلیږه په هغه زمانه کښې د عالمانو طاقت ډیر
زیات ؤ خوک ئے مخے ته ورتلے نه شو چا ته به چه دوی څه شوه نو د دوی تابعدار
به شو خو خیر او که د دوی نه به ئے رد کړو الی کوله نو هغه کس به نیست نابود شهٔ.
تکه د کابل حکومت ته او ګورئ چه په طبیعت د عالمانو چلیږی. مطلب دا چه د دوی
د همے او د تیسو مقابله بادشاهان هم نشی کولے. نو ملا عبدالرحمن به څه مقابله کړے
وه آخر ملایانو پرے د کفر فتوٰه ورکړه او د هزارخوانی مرکه پرے تنګه کړه. دوه درے
ته سړی هم په دے جمع کښې ؤو او په حقیقت کښې ملایان ؤو نو هغوی لا زر او
ملا عبدالرحمن ئے په توبه ویستو مجبور کړو او دهٔ بیا په مانځه کولو شروع او کړه
او د ملایانو په اوج زور د حال نه قال ته راغے. زما په خیال د ملایانو دهٔ په
کفر اسلام کښې څه غرض نه وو بلکه د هغه عزت شوکت ته ئے څه بهانه جوړه کړه
مګر دهٔ قدر خپلو ملګرو او بعضے حق شناسو ملایانو کولو. د ملایانو مطلب پوره نه
شو او دهٔ قدر عزت د پخوا نه لا زیات شو مسنګ ورا ورے صاحب سلامت شهٔ
بیا هم دومره قابل نه وو چه خپل اشعار ئے جمع کړے وے. بعضے خلق وائی چه پس
د مرګ ئے کتاب کړل. مګر دا غلط دے چه دهٔ په ژوند کښې کتابی شکل موندلے وو

یو کتاب په تول سړی کښې چا ونه کړو          بے رحمانه چه ئے وکړو دا کتاب

سیئ بیا هم دهٔ ډیر اشعار ضایع شوی دی اوس هم د هغه په دیوان کښې ډیر
کمے دے ډیرے غزلے چه په موجوده دیوان کښې نشته مګر د پښتنو په مجلسونو کښې

شته که چرے ماله خدائی تعالیٰ موقع راکړه نوزهٔ به دا کوشش کوم چه دده ټول کلام به راجمع کوم مګرزما د پاره لېږه ګرانه ده چه قوم بې قدره دے. ؎

زړهٔ مې سورے دیښے ترے څاڅي

دَ بې قدرۍ کچکول ترے لاندې ګرزومه

دے په اصل کښې دَ بهادرکلي وُو، مګر په هزارخوانۍ کښې اوسیدهٔ. دا ئې چه اوس هم هغه وُنه شته چه دے به ترے د لاندې کښېنستو او خپل اشعار به ئے وئیل مرحوم په بهادر کلي کښې دهٔ، مګرجنازه ئے هزارخوانۍ ته راوړے شوه او دَ اخون درویزه صاحب په مقبره کښې هزارخوانۍ ته نیامځ ښخ شوهٔ قبرسره ئې یو دړوکے جُمات هم شته دَ قبرنه ئې چارچاپیره چار دیواری ده او کوم اغزی چه دَ هغهٔ په زړهٔ کښې وُو هغه اوس دَ قبر نه راختلي دی. او دَ هغه وران کنډرلاړ خلقو ته ښائی. پښتون یو ژوندے او مست قوم دے دده په ختمه کښې شاعری آخلے شویده. هر پښتون شاعر دے او هره پښتنه نجلۍ شاعره ده. دا میچنے ترنا ستے وی او مسرے به جوړه وی. او د دیوان خاوندان هم ډیر دی مګر کومه مقبولیت چه دهٔ پیدا کړے دے نظیرئې نشته. دے لویه وجد دا ده چه دهٔ کلام ساده او رنګ ئې دتصوف دے دے وجې نه ئې بزرګان هم خوښه وی تردے حده پورے چه سوات اخوند صاحب به وئیل چه که دَ قرآن مجید نه سوا په بل څه مونږ رډ اوے نو مونږ به دَ عبدالرحمٰن په اشعار وکولو. دے نه نورڅه زیات عزت کیدے شي. او چه دا بزرګان یوخیز خوښ کړي نو بیا دَ هغه چه څومره عزت اوشي نو کم دے. دے نه علاوه دهٔ شاعری هم دَ څهٔ معمولی جذباتو اظهار نهٔ دے او نه محض دَ ځوانۍ دَ بهار ګلونه دی. بلکه دهٔ دیوان دَ خوږو زړونو نتوتے دی. یا دَ خونی جګر قطرے دی. چه پیدا کښ راجمع شوی دی دهرخیال دَ هرسړی دپاره پکښې مشغولتیا شته دَ هر ناسور دپاره پکښې دَ السا سونو یوز پیدا کیږی دهٔ غزلونه پښتانهٔ رباعی وائی او زهٔ دا نهٔ شم وئیلے چه دَ پښتون په ملک به داسے سړے یا ښځه پیدا شي چه هغه به عبدالرحمٰن نهٔ پیژنی دَ هر غزل خوان دپاره دا ضروری ده.

والسّلام

دیباچه ختم شوه

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

کوره هسې کردګار دې رب زما · چه صاحب د کل اختیار دې رب زما

هُمګي بزرګواران چه څوک يې وايي · تر همه ؤ بزرګوار دې رب زما

نه يې هيڅ حاجت په چا باندې موقوف دې · نه د هيچا منت بار دې رب زما

له نيستۍ يې د هستۍ صورت پيدا کړه · هسې رنګ پروردګار دې رب زما

هم صانع دې د جمله ؤ مصنوعاتو · هم سامع د هر ګفتار دې رب زما

چه يې هيڅوک نه مثل نه مثال شته · د هغو غفور و غفار دې رب زما

هر تعمير چه د دنيا او د عقبیٰ دې · د هغه واړو معمار دې رب زما

خوانندهٔ د نانويسو صحيفو دې · دانندهٔ د هر اسرار دې رب زما

که ظاهر دې که باطن دې که مابين دې · له همه ؤ خبردار دې رب زما

که پيدا که پوشيده دې که اوسعا دې · په همه ؤ وقوف دار دې رب زما

شريک نه لري په خپله بادشاهۍ کښې · بې شريکه شهريار دې رب زما

هسې نه چه واحد يې دې له عجزه · په واحد وجود بسيار دې رب زما

حاجت نه لري د هيچا دې رنګ ته · له هغو سره چه يار دې رب زما

څه حاجت دې چه و بل خوا ته يې غواړم · په خپل کور کښې همکنار دې رب زما

هيڅ تغير و تبديل نه لري رحمانه
تل تر تله برقرار دې رب زما

که صورت د مُحَمَّد نه وې پيدا · پيدا کړې به خدای نه وه دا دُنيا

کل جهان د محمد په روي پيدا شه · محمد دې د تمام جهان آبا

نبوت په محمّد باندې تمام شه · نشته پس له محمده انبيا

نور هاله د محمد وه په جبهه کښې · چه بوي نه وه د آدم او د حوا

په صورت که آخرين دې پيدا شوې · په معنیٰ کښې اولين دې د هر چا

خدای مه کړه بېشکه چه بنده دې · نور يې کل واړه صفات دي پرښتيا

که نبي دې که ولي دې که عاصي دې · محمد دې د همه واړو پېشوا

چه يې دين د محمد دې قبول کړې · جنتي دې که فاسق دې که پارسا

محمد دَ کبریا نور هسې دے
محمد دے دَ ړندو دَ لاس عصا

که رڼا ده پیروی دَ محمد ده
که ګڼه نشته په جهان بله رڼا

محمد دَ بې چاره و چاره ګر دے
محمد دے هر دردمند لره دوا

زهٔ رحمٰن دَ محمد دَ درخاکروب یم
که زه خدائ نهٔ کاله دې دره جدا

هوښیار مه ګڼه هوښیار دے دنیا
بې وقوف دي وقوف دار دے دنیا

روښنائی په څه ړوندو ده حرامه
چه پرے ګېنې ګرد و غبار دے دنیا

پوچ ګوئي ده چه یې اهل دَ دنیا کا
هر کلام و هر ګفتار دے دنیا

د طفلانو په څیر واړه خاکبازي کړي
هر چه کاندي کاروبار دے دنیا

واړه دَ کې خوښي دَ پېښو هلکان دي
کاردیده و پخته کار دے دنیا

همیشه به بې وقوف او بې شعور دي
چه مخمور وي په خمار دے دنیا

دَ شرابو هم لا همره مستي نهٔ وي
لکه مست وي خمرخوار دے دنیا

هر بیمار لره دارو په جهان شته دے
دارو نهٔ لري بیمار دے دنیا

دَ هر سوي علاج کېږي په اوبو سره
مګر سوي په شرار دے دنیا

هر چه واچوي دا ورته واړه سوزي
موړ به نهٔ شي طلبګار دے دنیا

ګرفتار یې همیشه په غم کښې ډوب وي
هېڅوک مه ګرفتار دے دنیا

تل به پروت وي دَ ظلمت په تور تم کښې
چه اسیر وي په کفار دے دنیا

پر مسلوکښ خاصه مسلوهغه دے
چه یې اوس تړلے زنار دے دنیا

تل یې پاتې شي بې سره سړیے لاړ شي
سردار کله دے سردار دے دنیا

خوږ لوړه یتیمان کا څښي دروي
بې وفا دي مور او پلار دے دنیا

همیشه به یې یو پند دَ غم په سر وي
چه په سر یې وي دستار دے دنیا

واړه غم دے که پیدا پېرے که یې پلورے
نور څه نشته په بازار دے دنیا

هم کې واړه تاوان دي تکې کاندي
فروشنده و خریدار دے دنیا

په دنیا به مینه نهٔ کاندي هېڅوک
چه خبر وي په اضرار دے دنیا

| | |
|---|---|
| چه نظر د چا په دین او په ایمان وي | هغه نه کا انتظار دده دُنیا |
| لوئي هسک یې همه واره مکاران دي | خو دیساده په مکار دده دنیا |
| آشنایان یې همه واره اغیاران دي | یار هغه دے په دیار دده دنیا |
| چه پیدا شي همګي واره فنا شي | راشه او ګوره ناتار دده دنیا |
| چه ویر یېږي له کوڅي اوله ګرنګه | هغه نۀ دروي په لار دده دنیا |
| هر سړي لره چه ورشي ځني دروي | ماليدلے دے رفتار دده دنیا |
| په یوه ګړۍ بهار وي بیا خزان شي | بقه نه لري بهار دده دنیا |
| که هزار هزار پشتۍ ته ورته کیږ دے | بي بنیاده دے دیوار دده دنیا |
| که د اُد سپنو حصار تر خان چا پیر کړے | نېښه د کنړه حصار دده دنیا |
| بلکه سورے د آفتاب په ځغلین ګرزي | نیشته هیچرے قرار دده دنیا |
| ځینوګان د بهترۍ وربانډ مېنځ کړه | کهتري ده وار په وار دده دنیا |
| بې مقراض غوڅوي د سړي عمر | هم د الیل هم دانهار دده دنیا |
| پس له مرګه به حساب د سړي غوښت شي | په انداز او په مقدار دده دنیا |
| عاقبت جو به یو بوټي شي د خاورو | ګلعذار و ګل رخسار دده دنیا |
| بیا بر به له ګدائي سره پاشي | شهزاده و شهریار دده دنیا |
| پای به داغ وي د لیئم په تبتهو باندے | هر درم و هر دینار دده دنیا |
| د تي نه ترقناعت صدقه شه | هم دنیا هم دنیا دار دده دنیا |
| پس له مرګه به همه واره مظلوم وي | ظالمان او ستمګار دده دنیا |
| ترتیامته د غه لس او د غه شل دي | پوره نکړو هیچا شمار دده دنیا |
| چه ایام ته د کفن او د غسل ورشي | بې پردے شي پرده دار دده دنیا |
| په تخته بانډ بیرون شي له حجابه | شرمناک او شرمسار دده دنیا |
| له هر چا به پیغمبر ښخه وه ډیره | که ښخه قرب ده یا وقار دده دنیا |

یو فساد به نۀ بیان په رحمٰن نۀ شي
دنیا دونه دي بسیار دده دُنیا

| | |
|---|---|
| هغو بیا مونده سعادت په دا دنیا | چه یې اوکړه قناعت په دا دنیا |

نۀ ملکونه دَ سلیمان په هزار کاله ‌‌ ‌‌ نۀ یوه کړی طاعت په دا دُنیا

یو نفس دخدائی په یادو ولی تر دے ‌‌ ‌‌ نه دَ درست جهان دولت په دا دنیا

په دنیا کښ لوټ هغو تالسواوُ کړ ‌‌ ‌‌ چه یئی اوُکړهٔ عبادت په دا دنیا

که نعمت دے خو طاعت او عبادت دے ‌‌ ‌‌ گنړه نشته بل نعمت په دا دنیا

که محنت که مشقت دے خو دین دے ‌‌ ‌‌ بکار نۀ دی بل نعمت په دا دنیا

بی له خدایه هرچه دی دا په فانی دی ‌‌ ‌‌ که لذت دے که زینت په دا دنیا

که بادشاه آخر خو ورولسره به دروی ‌‌ ‌‌ څه عزت دے څه حرمت په دا دنیا

له هغه به زیات نادان په جهان نۀ وی ‌‌ ‌‌ هرچه غواړی فراغت په دا دنیا

ته چه څو څته فرصت په دنیا غواړے ‌‌ ‌‌ چا موندلے دے فرصت په دا دنیا دنیا

عمارت په سود ریګ روان کا نۀ دی ‌‌ ‌‌ هرچه کا نۀ دی عمارت په دا دنیا

دَ مستانو تر لغزش څه کم نۀ وی ‌‌ ‌‌ دسړی استقامت په دا دنیا

هر زندۀ چه دَ مړو په قبر ورشی ‌‌ ‌‌ بس دے هم ره نصیحت په دا دنیا

په روانو اوبو ورشه ګوره ‌‌ ‌‌ ویر دے همره اشارت په دا دنیا

دا باخه پاخه سرایونه محلونه ‌‌ ‌‌ خود به وران شی عاقبت په دا دنیا

وړی ستړګی دَ آسمان څه هسی نۀ دی ‌‌ ‌‌ چه څوک پریږدی سلامت په دا دنیا

هرچه راشی همه وا په ځنی دروی ‌‌ ‌‌ مسافر دے هر صورت په دا دنیا

ریاضت په قیامت نۀ شی مرد هغه دے ‌‌ ‌‌ چه یئی اوُکړهٔ ریاضت په دا دنیا

هم په دا خوئ وخصلت به صبا پاڅی ‌‌ ‌‌ خدائے څوک مه کړه بدخصلت پیدا دنیا

هم هغه به نے خرمن وی پس له مرګه ‌‌ ‌‌ هرچه کا نۀ دی زراعت په دا دنیا

که هغه جهان په داکښ لید ے نۀ شی ‌‌ ‌‌ زۀ یئی وینم علامت په دا دنیا

په قیامت به بنه توبه څه بله نۀ شی ‌‌ ‌‌ مالیدلے دی قیامت په دا دنیا

امانت به دَ لحد په میانځ پروت وی ‌‌ ‌‌ هرچه اوسی امانت په دا دنیا

نیک عمل حضور جنت دی طاعت یو یه ‌‌ ‌‌ چه حاصل که څوک جنت په دا دنیا

نیک کردار هم نیک عمل هم نیک خویونه ‌‌ ‌‌ هم جنت دے هم راحت په دا دنیا

ضدیت دَ سړی عمر په عذاب کا ‌‌ ‌‌ بکار نۀ دی ضدیت په دا دنیا

لاس پہ سرپہ سینہ اینبی وھرچہ تہ — ھم دغہ دی شرافت پہ دا دنیا

کہ بلندہ مرتبہ دَ چا پکار وي — لویَ مقام دي عدالت پہ دا دنیا

بل ارمان بہ لہ جھانہ یو وڑ نہ شي — مگر ھر محبت پہ دا دنیا

دَ ھغہ جھان سودا واڑہ دلے دہ — کہ خوک کاندی تجارت پہ دا دنیا

کہ طالع دَ سری نہ وی جاروتلی — ھیڅ پټ نہ دے حقیقت پہ دا دنیا

نیک لہ نیکو سرہ بویہ بد لہ بدو — کہ خوک غواړی ولایت پہ دا دنیا

ولایت دے خدائے ھغو لرہ ورکړے — چہ یې ورک کړو سکونت پہ دا دنیا

کہ تمامہ دنیا واړہ سرہ یو شي — نور بہ نہ کاخوک قسمت پہ دا دنیا

کہ خوک مرد دي خو ھغہ دے پہ دنیاکښ — ھرچہ نہ لری حاجت پہ دا دنیا

پہ رحمٰن باندې دا عُمر ھسې تیر شہ

لکہ تیر شی یو ساعت پہ دا دنیا

بنہ دہ بنہ دہ دا دنیا — چہ توښہ دہ دَ عقبا

مذمت دَ دنیا مہ کړہ — دا ورہ پند کړہ دا دنیا

پہ دنیاکښ لوئ حکمت دے — پرے پوھیږی حکما

کہ تر سر یې صدقہ کړے — رنځ دفع کړی بلا

کہ غلیم لرہ یې ورکړے — غلیم دوست کا پہ ھوا

کہ پہ اور باندے یې کیږدے — بوی دَ عودو کړی پیدا

کہ یې توی کړے پہ صحراکښ — ښائستہ کاندی صحرا

کہ یې نذر کړی وپیرتہ — خوشحال دروی پہ خندا

خو ژوندی یې پہ دنیا کښ — یادِ وی دِ پہ دُعا

دَ خاتم پہ خیر دِ ساقی — خطاب ورکړی دَ سخا

سخی ھر یو دوست دَ خدائے دے — وَلَوْ کَانَ فَاسِقًا

ھر بخیل دَ خدائے دښمن دے — وَلَوْ کَانَ زَاهِدًا

دنیکبخت دَ آخرت دیے — داخبرہ دہ ښتیہ

دَ دنیا طالبان ډیر دی — کہ یې مومی خوَ لہ چا

ولي مرد پکښې هغه دے　　چه سخي وي هم پارسا
په دنیا کښې بدي نشته　　که بدي نه وي له تا
دنیا بهر دے بجیږي　　آئینه غونډې صفا
خپل خپل مخ پکښې لیده شي　　که ښکلی زشت وي که زیبا
هم خطر پکښې د سر شته　　هم ګوهر دے بے بها
وفادار لره وفا شوه　　جفا کار لره جفا
له یوه تخمه یې دروي　　له بل تخمه یې دوا
چرته خوند کاندي د زهرو　　چرته خوند کا د حلوا
کار هسه واړه موقوف دے　　د سړي په همت عا
سالکان دي ننداره چې شي　　د خپل ځان په تماشا
هرچه کا هغه به مومي　　دنیا ځائے دے د جزا
نکه دي هسې به سپاسي　　که نادان وي که دانا
که دانایي د پوهیږه　　په ردا به نا روا
فتوی و نسه په محکښ　　پے متې کړه په تقوا
دنیا نرۂ ده واړه دین دے　　چه له ذهي وي سیوا
وطاعت ونه ولاړ وي　　همیشه تر لي مسلا
له حرامو یې پرهیز وي　　مشغول وي په پنځه بنا
کامه یې وي قبوله　　هم په جبر په اخفا
د دنیا د کار د پاره　　قرض مونځ کاندي قضا
هم صائم د رمضان وي　　هم زکوة کاندي ادا
که یې توان د حج رسیږي　　حج هم اوکړي په بیا
دا پنځه بنا د دین دي　　چه بیان یې اوکړو ما
چه یې یون په دا طریق وي　　هغه کس دے اولیا
که یې مال د دنیا ډیر وي　　هیڅ یې نه کاندي پروا
دنیا بده د هغو ده　　چه یې کسب وي ریا

یا یې تو له کا په ظلم — یا د خمرو په سودا

یا یې ورکه په شرابو — یا یې ورکا په زنا

یا ناحق خونونه کا ندي — یا مالونه خوري دَ حیا

عبادت که په خان فرض — دَ بادشاه دَ اُمرا

حق باطل کا باطل حق کا — په سبب دَ روۍ ریا

نه یې ویره وي دَ خدائے — نه یې شرم نه حیا

دیوے کیږے د پاره — هزار خوني کا بیدیا

همیشه یې له ستم — واره خلق دي په غوغا

کوښي وهوښي یې هرگز نه وي — دَ مظلومو په ژړا

دَ فرعون په خیر به ناست وي — بې پروا و کبریا

بت خانې وته یې مخ دي — و مسجد وته یې شا

اختلاط کا دَ بدانو — له نیکانو دي سوا

## ورځنن ته پیښه مه کړے

خدایه هسے رنګ بلا!

راشه مه کوه له چا سره وفا — لږ ژوندون دِ ضایع کیږي بیوفا

په دنیا کښې هیڅوک نه دي باقي شوني — واره تلوني دي که ته دي که صبا

دا یاران چه ته وتا ورته حبلود کا — په دوه ورځې پس به واره شي فنا

که دیدن دِ دوی خوښ دي ورته گوره — چه فنا شي بیا به کله شي پیدا

دَ خزان پانړے چه بیلې شي له بناخ — په حکمت به یې پیوند نه کا حکما

چه په زمکه شاځي پریوځي له آسمانه — بیا له زمکے ختے نه شي په سما

گمان مه کړه چه بیا ستر گو له درشي — هغه او ښکے چه له ستر گو شي جدا

دا په هره ورځ چه خیژي بیل بیل نمرے — هرچه پریوځي هغه نه شي ختے بیا

که جنت په زهد نه دي بې له فضل — هر سړے دِ خپله غاړه کړي ادا

که دَ ښې د پارده سل محنته وکړے — یو محنت به دِ پوره نه شي فردا

که تمام جهان په خپله کیږه هو خوري — یاده به نه شي په دردا دپه دُغا

که یوه دانه د اوبړی په لاس ورکړی — هم دغه به دې توبه شي د عقبا

که یو ښاخکے اوبه تږی له ورکړے — د دوزخ او ستا ترمینځ به شي دریا

که یو څوک سر د خدائ دپاره ټیټ کړے — په قیامت به سربلند شي له هر چا

بازار دادے که څوک سود د سودا کاندې — په هغه جهان نه سود شته نه سودا

آشنایان که څوک پوهیږی تن یې وخت دے — چه زاریږی یو آشنا تر بل آشنا

که ژوندون تو مه خوم دادے په جهان کښ — چه له چا سره تیریږی په خندا

خدائے امان ورکړه له هغے زندګئ — چه نه بد وائے له بله بل له تا

زهر به دی چه په صلح په صلاح دی — نه شکرے په فتنه او په غوغا

نفس په خاورو په خس ډک به دے بی غم — نه د غم په خاروخس بخچه حلوا

ماته ملا په مشقت په محنت به ده — نه حرامه همیانئ د چا ترملا

روند بهتر دے چه څه نه وینې په سترګو — نه چه سترګے په پردئ حرام کاوا

ګونګ بهتر دے چه نه اوری په غوږو — نه چه غوږ کاندې په بد و بیل شنوا

دیو ودد که په خوا درشي خوبهتر دے — خدائ دې بد سړے درنه ولي په خوا

د جاهل تر همدمئ به بهتر وي — که له چا سره همدم وي اژدها

که شکل دی خو د زړه د نور غول دی — سهل کار دے سود زیان دے د دنیا

سود زیان د دنیا واړه سهل کار دے — خدائ دې نه کا څوک په سهل کار رسوا

چه د دروا ود عزیز زړه پما زار شي — حاصل مشه هغه خپله مدعا

ګاه د نورو رضا بویه ګاهے خپله — پکار نه ده همیشه خپله رضا

بنه خواره چه یو یې خوری بل ورته ګوری — خواره نه دی هغه زهر دی ګویا

چه ښادیږي یو زمان دی غم یې تل وی — دغه هسے چارے نه کاندې دانا

له ښاخ هسے و بل وته نظر کړه — نکدستا دے هسے ځان وے د هر چا

منصفان لره بویه چه انصاف کړی — نه چه نخوته کا د حرص او د هوا

دسري په خاطر هرڅه هرڅه ګرزي — هسے نه چه داره او ګرزی ردا

دینداران دې و خپل دین وته نظر کا — څوک فکر و نه د شراب څوک د خطا

خدا [illegible] نه کاندې خطا د چا له لاسه — څه نسبت دے د خطا او د عطا

هسې نه چه سري واړه سره سم دي
شوک اعلیٰ دي شوک اوسط او شوک ادنا

د هر چا درمت په خپله اندازه دے
نه چه مومي نفر ځنې د اُمرا

زهٔ رحمن له چا شکوه شکایت نهٔ کړم
نشته بل دوست و دښمن زما بې تا

که شوک یار په جهان غواړي یار دے دا
یار دے دا که د جهان سنګار دے دا

خیال د زلفو دِ زما تر زړهٔ چاپیر شه
یا تر ګنج چاپیر شوے مار دے دا

دا جهان مې خدائې له عشق پیدا کړے
د جملهٔ مخلوق تو پیدا ر دے دا

تر عشق غوره بل څه کار په جهان نشته
تر همه کاره نو غوره کار دے دا

یو بلبل به د ګل نوم اخستے نه وه
که خبر وے چه ګل نه دي خار دے دا

بیا راتله د دے جهان ته بل وار نشته
بل وار نشته بل وار نشته وار دے دا

د حباب عمر دِ دوګوري په څه دے
که شوک شمار کاندي د عمر شمار دے دا

د مجنون صورت په زړهٔ کړه رحمن ګوره
ستا په عشق کښې هسې خوار و زار دے دا

چه له تا سره په سر کاندي سودا
بل به نه وي هسې ما غوندې شیدا

نه به ما غوندي شیدا وي په جهان کښې
نه به تا غوندي دلبر شي بل پیدا

ما دا ستا جور و جفا دي قبول کړي
ولے نه شي د ژړا په ځائے خندا

بې دا ستا له مخه کوم دے که مکان دے
بندهٔ تو نه یم نه په دا شي نه په دا

جدائي به د هیڅ رنګ قبوله نهٔ کړم
څوم نه دے روح کالبوت سره جدا

که رو ستو مقتدیان دراندي امام دي
ما به تا پسې ده کړے اقتدا

زهٔ یو نه یم درست جهان ستا مین دے
که بادشاه دے دے که هر که ګدا

کاشکے خط دِ اماني و ماله راکړے
چه له ما سره وعده کړې د فردا

زهٔ په خپله په تا نهٔ یم مین شوے
ستا له لوري په ما شوې ده ندا

زهٔ په تا باندِ مین یم له ازله
نه چه کړے مې نن ورځ ده ابتدا

چه د ستا په عاشقۍ په تیغ شهید شي
د رحمن غاړه به هسې له شي ادا

د رحمان وزیري رنګ ته نظر کړه
چه مدام به تا پسې کاندي ژړا

کہ مېئن ئې پرځنې يار بانډې رنجتيا        آواره کړه او ل دين پسے دُنيا

په وفا دَ دلبرانو غلط مۀ شې        دغه قوم دے بيوفا وکبريا

دَ خوبانو طائفه ده هسے شوخه        چه غوږ نۀ باسي دَ چاپ واويلا

دَ ويرنازاو د ويرکبر له سببه        عمل نۀ کړه په ګفتار دَ اوليا

دل و دين په يونګاه دَ سرې يوڼي        نۀ يې ويره له چا کيږي نۀ حيا

بل به هسے سرګردان په جهان نۀ وي        يا عاشق دے يا آسمان دے يا آسيا

تۀ چه ژغورې سر و مل په عاشقۍ کښ        عاشقي دا هسے چرے ده ويريا

دَ جنت له حورو تيرشه که يارغواړے        خدايئ د نقد دَ چا نۀ کانډې نسيا

وساقي د لاس هسے پياله نوش کړه        چه د غوږ کۀ زړۀ خيږے دَ دريا

چه يې کسب عاشق شوه د دلبرو        نظر نه کانډے په کسب دَ کيميا

يو ګفتار ور لره بس کانډې رحمان

چه په هر ساعت پوښتنه کړي بيا بيا

عاشقي م په زړۀ ورکړه ګذار بيا        بيګناه م لېبے بلي کړے په سر بيا

کۀ دنترد ځين قسمت م په لاس و سے        ما به شا له غمه وران کړۀ دا دفتر بيا

مالا نوم دَ عاشقۍ اخستے نۀ وۀ        جدايي د راته جمع کړۀ لښکر بيا

پس له مرګ به يې بياله تا قربان کړم        کۀ صورت م خدائے پيدا کړۀ په محشر بيا

دَ هجران محنت م واړه له زړۀ هير شو        چه م وليدۀ په سترګو ستا بشر بيا

چه آسمان يې مخ پټ کړے په سحاب وۀ        خدائے و ما ورته بنکاره کړۀ هغه قمر بيا

چه رقيب راته ترلې په زنځير وۀ        ځپل حبيب را بانډې پرانت هغه در بيا

په يوۀ نظر يې زړۀ را غځه يو ور        خدائے د خيرکا چه لا وکړي بل نظر بيا

په وصال يې منت باراو سه رحمانه

په صدف کښے د خل نشته دَ ګوهر بيا

دل و دين م په هغه ترک کړۀ شدا        لا يې نه حساب وي دَ ځان بها

دَ بنايُست صفت يې څه کوم حيران يم        په هيڅ شان يې موندے نشي انتها

دَ صورت له عيب هسے پاکيزه دے        لکه ذات د وينبته نشته دے په هغ

که یې مخ په زلفو پټ دی باک یې نیشته　　　تل په ګنج باندې پروت وي اژدها
نه پوهېږم چه په کومه لاره درومم　　　چپ و راست م رقیبان دي هر ځا
خدایه ډېر تنها نه کړه څوک په غم کښې　　　لکه زه د یار په غم کښې یم تنها
همیشه د بېلتانه له غم لولم
زه رحمٰن نعوذ بالله منها

ویره شوه په یار پسې ژړا زما　　　نه کړو هېڅوک په ژړا آشنا زما
کړم هره ورځ درشي په ګوهر شي　　　ستا د غوږ نه ده لائق وینا زما
په نارو به ما بیدار کړه که اوده وي　　　راته ویښ او ده شه دلربا زما
زه مکتوب غونډ په پټه خوله ګویا یم　　　لا نور کړله خاموشي غوغا زما
ګښت د عشق په توده زمکه آسان نه دی　　　ممند ربویه په دی صحرا زما
دا یارند دی چه هجران له مانه بیل کړه　　　د غه روح له تن شه جدا زما
زه رحمٰن بې خپل یاره هیڅ نه غواړم
که قبول خدای ته وي دعا زما

عالمان دي روښنائي ددې دنیا　　　عالمان دي د تمام جهان پېشوا
که څوک لار غواړي د خدای او د رسول ته　　　عالمان دي ددې لارې رهنما
کیمیا ګر که د کیمیا په طلب ګرځي　　　همدمي د عالمانو ده کیمیا
په مجلس د عالمانو به سره زر شي　　　که څوک کاڼي وي یا لوټې د صحرا
جاهلان دي په مثال د مردګانو　　　عالمان دي په مثال د مسیحا
چه مرده یې له نفس ژوندي کیږي　　　عالمان دي واړه هسې اولیا
هر سړي چه رتبه نه لري د علم　　　سړي نه دی خالي نقش دی ګویا
زه رحمٰن حقه یکوش د هر عالم یم
که اعلیٰ دی که اوسط دی که ادنا

چه واده یې کا پیدا دول او په سُرنا　　　بیا پرې وایې زمانه دویرو ینا
که م هر څو دلبري او دلجوئي کړه　　　زه پوهېږم د خپل یار په استغنا
په یوه کړي م یار هم م آشنا شي　　　بیا م بله کړي نه لري آشنا

دا زه خپله تسلي کړم يا ربه بولم ــــــ خه ياري ده د ناتوان او د توانا

يو زمان ويودم بي خپله صنمه ــــــ زه بهتره تربتا کړم فنا

هر سړے په يوه چاره خدائے مشغول کړل ــــــ زه مشغول کړم رب د ترکو په ثنا

ما بي عشق بل هنر نه زده ناصحه ــــــ بخښنده شه که نادان يم که دانا

چه غوږ په ناروه باسي حيران يم ــــــ پروا نه لري که وړه دی که برنا

بے ديداره بنده ديدن د خدائ نه کا
د رحمان په زړه ګنځے بله تمنا

دا دنيا ده بي وفا ــــــ بے وفا ده بے بقا

نه يے غم شته نه يے خوښه ــــــ لکه لوټه د صحرا

په يوه ګړئ يے غم وی ــــــ په يوه ګړئ يے ثنا

په يوه ګړئ دستا وی ــــــ په يوه ګړئ زما

په يوه ګړئ يے درد وی ــــــ په يوه ګړئ دوا

په يوه ګړئ خوف وی ــــــ په يوه ګړئ رجا

په ساعت کښ يے بقا وی ــــــ په ساعت کښ يے فنا

په ساعت کښے يے سکوت وی ــــــ په ساعت کښے يے غوغا

په ساعت کښے يے خندا وی ــــــ په ساعت کښے يے ژړا

په ساعت کښے يے وفا وی ــــــ په ساعت کښے يے جفا

په ساعت کښے يے افلاس وی ــــــ په ساعت کښے يے غنا

چه نه شان لري نه شکل ــــــ که دا شي ګله دا

خدائے خوک پېښ مه کړه رحمانه
په دا هسے رنګ بلا

په بنادئ بناد شوے نه يم د هيڅ ــــــ تور تپ سوے يم په غم د هر آشنا

که زه طمع تو قع له بله نه کړم ــــــ د بل طمع تو قع کيږي له ما

کړم ورور کړم عزيز کړم فرزند وی ــــــ واړه غواړي خپله خپله مدعا

په هر کور کښے رنځوران دانه پراته دی ــــــ لاس يم نه رسي د هيڅ په دوا

دَ دُنیا خبرے وارہ پہ دُنیا شی    ما بہ څہ کا څوک چہ نہ لوم دُنیا
چہ پہ کلی کښے مِ کوردے زۀ کمان کرم    چہ کور نۀ دے دا مِ کوردے پہ صحرا
چہ څۀ کار پرے نۀ پورہ وی نۀ نیمگرے    څوک بہ څہ کرہ لہ هغو سرہ خندا
چہ یئے بنۀ توبنہ وبلہ سرہ نۀ شی    تر هغہ آشنا بهتر دے نا آشنا

پہ تودہ زمکہ استوږنہ دہ مشکلہ
څہ بہ زیت شی لہ رحمٰن سرہ دیا

کہ څپل زرۀ غوارے لہ چا    ځان صبیا دکرہ دَ عنقا
دَ حباب کلاہ پہ سر کرہ    سور بہ آمرشہ دَ هوا
لکہ خضر هسے پاسہ    او بہ اوڅښنہ دَ بقا
لہ زمین قدم کیږدہ    پہ آسمان لکہ عیسا
دَ هغہ استاذ شاگرد شہ    چہ دروښئی کیمیا
داچہ ما درتہ بیان کرہ    کہ حاصل کرے وارہ دا
هالہ طمع کرہ رحمانہ
لہ خوبانو دَ وفا

ستا پہ خیر نۀ دی خوبان لیدلی ما    نہ پہ غوږ وچرے اوریدلی ما
هیڅ دَ نالہ عاشقانو سرہ نۀ کا    دلبران دی وارہ آزمائیلی ما
چہ مِ ستا دنکلی مخ تہ دی کتلی    بل یو بل و مخ تہ نہ دی بیاکتلی ما
دَ زرۀ غولی مِ نیولے ستا غمونو    نور غمونہ دی لہ زرۀ ویستلی ما
چہ مِ کار دَ عاشقئی پہ لاس کښ داخت    دي لہ بل کارہ لاس وښکلی ما
نور غمونہ مِ لہ زرۀ نہ دی وستلی    ستا غمونہ پکښے دی کرلی ما
زۀ رحمٰن بے یارہ خوب وخندا نۀ کرم
بے دۀ نۀ دۀ خوب خندا پسندلی ما

هسے مست یم ستا دَ شونډو پہ شراب    چہ بہ نۀ وی بل دا هسے مست خراب
لاس دا ستا پہ مینہ اچو مر وکل تہ    لکہ برتی تہ لاس اچوی غرقاب
دا سرخی او سفیدی دہ ستا پہ مخ کښے    کہ زما پہ مخ باران دے دَ سحاب

ځا ژبه زما اوښکې په تا کاندي — لا تازه شي اور په اوښو د کباب

عاشقان دې سترګې روڼې که په عشق کښې — داخوب نه دے منزل ګاه دے د سیلاب

ماچه خال دا ستا د رو خو په میان ولید — نه بل هسې رنګ امام شته نه محراب

بنا پیرۍ چه لیدے نه شي سبب دا دے — ځکه زیست په توره شپه کاندې مهتاب

حجاب واخله مخ کړه تور د هغو خلقو — چه تحسین که ستا په دور د آفتاب

هسې نه چه زه د لبرو تا ته وایم — خدائے دے نالوره درکړے دا خطاب

ستا د مخ په ورق پاندې خط و خال دے — د مصحف په صحیفو باندې اعراب

ستا د حسن حساب هیڅ راځخه نه شي — هم په دا چه بے حساب دے بے حساب

یو کتاب په سړبن کښ چا ونه کړو
بے رحمانه چه یئے اوکړ دا کتاب

چه یئے ولیده ستا حسن بحجاب — له دے قصده تاو پیدا شه له آفتاب

په آرزو دې د نرګس سترګے غلور شوے — غنچه سره د زړه په وینو شوه غرقاب

تا په غم م سترغلي سره سرے ناغي شوے — باغیچے دی سیاه پوشے سره طناب

که د زلفو په مخ پیچ و تاب شوے بنایي — وینته څه طاقت لري دا ورله تاب

زه چه خدائے دا ستا د غم سره آشنا کړم — خوشحالي م نور تا یا به شوه نایاب

سترغلي م د فراق په ژړا سره شول — د سبزې اثر یئے پاځید له آفتاب

ماه خورشید دې په بنائیت پووے شرمیږي — ځکه مخ ننا کړي د کوه تاب

زه دې پیژنم په اصل کښے خاکي یئے — ځان به څو ښنږے په کوته له تراب

څو دې خیال د آشنا کړي په لیمه کښے — خبر زده کړه ته دا د ښو له سیلاب

د رحمان په بخت هاله د خوبه ویښ شي
که ته سترګے ورته پورته کړے له خواب

ورقونه لتوم د هر مکتوب — پکښے غوارم خال و خط د خپل محبوب

یا تنور دنه یا دکان د آهنګرو — چه په عشق کښے تصور کړم خپل مطلوب

په خندا خندا ځان اچوي دا ورته — خدائے څوک مکړه په جذبه د عشق مجذوب

زه چه غم د هر و یا نورا په زړه کړم — له دے غمه لار شم زړه راځخه دوب

که عشق څرنګ آسان کړه و عاشق ته        دا مشکل مشقتونه د ایوب
په ژړا ژړا تر هغه حده راغی        چه ځان ړوند کړه په یوسف پسې یعقوب
عشق دا چه معشوقه شه و عاشق ته        بنه رخسار د مهرویانو په اسلوب
هغه شه پوهېږي له هجره له وصاله        چه پېژني هم محب شي هم محبوب

چه نظر يې له صورت په معنیٰ کړه
د رحمٰن وته یکسان شو زشت وخوب

چه نظر کړم په قسمت او په نصیب        را ته هیڅ شي خپل نالاش وخپل ترتیب
مګر خود چپله خدائے د چا طبیب شي        ګنړه نشته په جهان کښې بل طبیب
راڅرګند دے سودا وزیان د رقیبانو        که خدائے نه کاندې خپل یار د چا رقیب
چه خپل یار د چا طبیب شي مثل دا دے        لکه څوک چه په وطن کښې شي غریب
چه غریب شي په وطن کښې نرق یې نه وي        که نو ښکيېې وي ترسیان که جریب
ما په عشق کښې هیڅ حاصل نکړه بې غمه        هر چه وائي داره به وائي ادیب

دشمن هم د سري که کله دوست شي
دوستي نه کا د رحمٰن سره حبیب

که مې اوشي له دلبره ملاقات        پا به نه ځم له دے دره په حیات
پو له مه یم دا ستوږ نه خدائے نصیب کا        په دا درګښې که حیات وي که ممات
ښائي دا که زه خپل یار وته سجده کړم        هغه یار زما قبله دے د حاجات
د خپل یار تر لعلو لبو به یې خار کړم        که شکرې وي که قند وي که نبات
دا زما دیار جلوه ده چه لیده شي        لکه نمر په صومعه وسومنات
تر مالا په دلبرانو دېرمین دے        چه خبرے کړے د کشف وکرامات
د ریاله زاهدۍ زما توبه ده        چيڼې کاندې څوک په رسم د عادات
په ورځ پند ونصیحت وائي وبل ته        په شپه ناست دی د مغان په خرابات
دین يې دا مروي د دنیا په لار کښې اینې        پرے ساره وي وحشیان د مخلوقات
د هغو په لورې سترګے وي خښتلې        چه په لاس ئے سر سایه وي یا زکوٰت
زه رحمٰن له هغے اهل پناه غوارم        هر چه لاف کړه په خلاف د مقامات

تاچه په داتوروسترګوکاته دَماتَ | زړهٔ دِ زماتورکړه لهٔ نورمخلوقاتَ
ماخوچه ته وُليدے هغه ساعتِ مُ وُوِ | نورنه به مِ مينه دَزړهٔ نهٔ شی لهٔ تاماتَ
شيخ وزاهدان چه نصيحت وائي دماته | نهٔ دی خبرشوی ستادَغم لهٔ محسناتَ
غم وُشوکه زهٔ اشکست نا شوم ستاپه مينه | لا ترماته خوښ بي وَ دَمنی تهٔ مُلاتَ
مرم په داچه مالهٔ تاجاربا سی هغه خلق | بياد په ديدن ترمارومبے درزغلی خوات

زهٔ رحمٰن چه يارُودينم وايم خدائی خيرکړی
که وبناپيری دهٔ دَ بنيادم لهٔ ذاتَ

آفرين دَ عاشقانو په همّت | چه په عشق کښے يک انداز وی يک جهت
نهٔ ئے ميچرے تغيير ونهٔ تبديل وی | که تمام جهان پرے وائي ملامت
که څوک سل نصيحتونه ورته کاندِ | غوږ ئے نهٔ وی دَ هيچا په نصيحت
چه په يار پسے ترخان وجهان تير شی | څوک کولے شی دا هسے مشقت
که تمام عمر ئي يار په سترګو ناست وي | تمام عمر ورته ښکاري يو ساعت
که يو دم شی هغه يار ورغخه لری | هغه دم شی ورته عمر دَ قيامت
که دوزخ لره دَ يار په مينه دروی | دوزخ هم ورته جلوه کا دَ جنت
دعشق لارهٔ توکل په ښنو غوخيږی | نه په ښنو درياضت و ديانت
په تالاش اوپه تدبيرکه مونده شی | چه موقوف وی هغه کار په عنايت
دعاشق خاطر لهٔ غيږه پاکيزه دے | د درياب په ځنګښے نهٔ وی نجاست

خدائيے چه زړهٔ طالب کانړی کړه رحمانهٔ
کانړے پريوت دَ طالب په عمارت

چه وِتيلی مِ لهٔ تا دے داحديث | سرنامه دَ هرانشا دی داحديث
چه آغازمِ کړه په مدح دَ خوب تو | ځکه ګنج بے بها دے داحديث
په ثنا دَ دلپسند و دلربا وُ | دلپسنده دلربا دے داحديث
نکه بادِ صبح دِ م چه غنچه واکړه | هسے رنګه دلکش دے داحديث
چه اوصاف مِ دَ سروشونډو پکښے راوړه | خوږ ترتنګ د ترحلوا ده داحديث
نهٔ پوهيږم چه اوبه دی دَ حيا تو | که نفس دَ مسيحا دے داحديث

د غونډو ږبو شاعرانو د خولې نه دي ... څکه هسې رنګ صفا دے دا حدیث
ستا ونځ تړ که څوک شمر و تسمر دا یې ... دروغ نه دي په رښتیا دے دا حدیث

که څوک وایي چه چا کړے دا حدیث دے
رحمٰن وایي چه زما دے دا حدیث

چه برهم که عاشقۍ د چا مزاج ... حکیمان یې درمانده شي په علاج
په آشنا پسے تل ژاړي په دوه سترګو ... دا دبو څانه خوناب کاندې اخراج
دواړه لاس یې له دواړو کونو ولي ... په دب دی تل د عاشقۍ په امواج
په هغو کښې چه څه بوي د عاشقۍ وی ... چه په نورو یې موقوف ده احتیاج
لیونتوب له لیونو نه ستلوفی نه دي ... که یې راج په خوله ورشي که تاراج

که یې سر لکه منصور غوندې په دار شي
د غه دار دے و رحمٰن و ته معراج

چه خبر شوم د ساقي د جام له راځ ... لکه مرے ملاقي شوم له ارواځ
زه چه زلف د یار و وینم په خوب کښے ... په شپه مشک راباندې وری تر صباځ
صبا زیري د وصل په مهجور کاندې ... د هوا خبر موندے شي له سیاځ
کړ دوا که خون خوردن د عاشقانو ... څوک د تی شي د خوبانو له صلاځ
هر ساقي چه جام د عشق لری پلاس کښے ... دا پیاله یې په مستانو ده مباځ
مخ که بے مینے څوک ستایې ستایه نه شي ... د ممدوح له قدره چرته ده بې مداځ

د دنیا نا وے په عقد کښے دین غواړي
اے رحمانه څان یې ژغوره له نکاځ

چه پیدا شو ستا چشمان دا هسے شوخ ... نو به نه وی مرد مان دا هسے شوخ
کږ زلفان کږ ابروان لکه چه ستا دي ... نه لرم شته نه ماران دا هسے شوخ
ویرغونه شوخ شوخ شته دے په جهان کښے ... ولے نه لکه هجران دا هسے شوخ
مکر دیو وی چه بے غم وي په هجرا کښے ... کنږه نه به وی انسان دا هسے شوخ
دا فتنے او فسادونه به وُو چرے ... که پیدا نه وي آسمان دا هسے شوخ
دا آشنا له غم زړه د آشنا نه چوی ... آفریده کړ خدائے جهان دا هسے شوخ

چه یوسف یې دَ دنیا په متاع ورکړه ... آفرین دې کړه خدائې جهان دا مې شوخ
چه بوسه له یاره غواړي بې ادب ... خدائې دې نه کاندي رحمٰن دا مې شوخ

بادشاهانو که قصرونه کړل آباد ... ما دعشق عمارتونه کړل بنیاد
نوم دکوم یوه بادشاه مې یاد نه دی ... لکه نوم دے دَ مجنون او دَ فرهاد
عشق عاشق له یو مې پیر استاد دے ... چه به نه وي بل دا مې پیر استاد
دغه واړه کرامت دَ عاشقئ دے ... چه څوک عرش کاندي څوک تعلب څوک اوتاد
دنیا چارې همه واړه فاني دي ... څوک به څه کا په دا چارو اعتماد
لکه سوري چه دمر په مخکښې تېر زي ... نه استوګنه چرته کاندي نه استاد
هیڅ دنیا یې له هیچا سره ونه کړه ... که جمشید وه که بهمن وه که قباد
که جمشید وه که بهمن وه که قباد وه ... که نمرود وه که فرعون وه که شداد
رسولي یې ترمراده هیڅوک نه دي ... همه واړه مې پاتې شول نامراد
نه یې ختم دَ دعا ورپسې وکړل ... که یې آل که یې عیال که یې اولاد
زهٔ رحمٰن دزمانے له جوره دروم
خپل صاحب له په دادو په فریاد

که قاصد یې دَ مقصود ... آواره کړه زیان وسود
هرچه درشي ستا دَ وړاندي ... داوره وکړه بهبود
هرچه دي سوي له خدائي ... واړه وکړه نابود
رضا پاسله قضا ته ... صدا دخوښ او سه خوشنود
وهتئ ورته جنون کا ... لکه ابر هسې دود
ته وخان ورته نظر کړه ... چه قبول ئې که مردود
نندارچي دَ خپل صورت شه ... چه مسلم ئې که جهود
امتی دابراهیم شه ... تابع مشه دَ نمرود
دغفلت له خوبه پاسه ... خوبه اوسې خواب الود
مقید د مشغول اوسه ... په دعا وپه درود
آسمان طور په رکوع شه ... زمین طور په سجود

که بیدار شي خود به وا وړي — په هر لوري دا سرود
که آیاز غنډ بنده شي — نور به ناز کړه په محمود
هر اسباب د بنو د سبد و — مهیا دي هم موجود
که دانائي د بله بیل کړه — فرموده و نافرمود
څو سپند نه شي په اور کښ — نه وي خوند د بوی د عود
ځان له خبث پاکیزه کړه — لکه بحر نا معدود
هلاک څکه شي رحمانه — چه پاک نه شي دا وجود

## رحمٰن بے دیار له ذکره

نه زده بل گفت وشنود

زه که لاف د وفا کړم هر چند — هغه یار م باور نکړي په سوګند
زه بي یاره هسې زیست کړم په جهان کښ — لکه زیست وي په مجمر کښ د سپند
آبروئي د طالبانو خپل مطلب دے — آبروئي د غلامانو خپل خاوند
لکه یار مي سربلند دے په جهان کښ — په تاثیر ئي هسې زه یم سربلند
لکه یار م سربلند دے په جهان کښے — زه هم هسې په دا دور کښ څرګند
چه م مدح د خوبانو کړه آغازه — هر کلام مي دلپذیر شه دلپسند
لکه خوند لري زما خوږ بے خبرے — په شکرو کښے هم نشته هسې خوند
هغه تند چه خدائے زما په خوله کښ کیښود — حلوا یا نو څخه نشته هسې تند
لکه زه چه سخندان و هنرمند یم — بل به نه وي سخندان و هنرمند
په اشعار کښ تو تنک لکه زمرے یم — ولے نه یم د زمري په څیر ګزند
هم په مدح د هم په هجو بنه پو هیږم — ولے نه یم په دا چارو د یر خورسند
بے له غشته که م غیب کړم هنر دے — ما غوځ کړے دے له ځان نه بیوند
زه عاشق یم سرو کار مي دے له عشقه — نه خلیل نه دا ودزے یم نه همسند
چه رماته نصیحت که څوک په عشق کښے — ګویا پلار ته نصیحت که فرزند
هر سړے چه آئینه په لاس کښ خاندي — ګویا خاندي په خپل ځان پورے رشخند
رنګ ریزان دا ول خپله زیره رنګ که — بیا هله د و رحمٰن ته وائي پسند

ستا په عشق کښې هسې خلاص یم له شعوره    چه یوه خبره نه لرم منظوره
طبیبان وایي چه صبر دې دارو دی    خدائی زموږ فرقه پیدا کړه ناصبوره
تورې هرچرې ترلې په دشمن شي    یاره ستا سترګې دوستان وژني په توره
معشوق دَ رماني شوې سره تهولې    دَ زړهٔ خونه مې یې ولوټله چوره
زهٔ تنها په ضرور نهٔ یم ستا له غمه    پیدا شوې عاشقي ده له ضروره
هره شې لوه ورځ شته دې په دُنیا کښې    زما عمر جدائي کړلو بې نوره
مهرویان وفا له هیڅ سره نه کړه    داخبره په عالم کښې ده مشهوره
له حیرته واره ګوتې په غاښ نیسي    په هجران کښې چه خبر شي له مهجوره
درقیب له بد وسترګو ځان ژغوري    هر عاشق چه بهره مند شي له حضوره
همه توان وتوفیق نهٔ ګڼم په بخت کښې    چه تائب که ماله فسق وله فجوره
په نظر دمدعیانو تور کودي دي    که یې ګنېنوم دکتې د پاسه حوره

**رحمٰن** دسترګو نم به هاله وچ شي
که وچ شوې د چانم وي له ناسوره

همره اوبکې مې بهیږي په رخسار    چه غرقاب یم هم ګریوان دمې هم کنار
هغه یار مې هسې ناست د زړهٔ په سر دې    لکه اېښې چه چا ګل وي په رخسار
که خوک وائي چه مار کله په کټ خیژي    زهٔ خوړلې یم په کټ د زلفو مار
خود یار بیماري سترګې خدائی خوني کړې    ګڼه خون که کولې شي بیمار
که په دار شم زهٔ دیار د لاس خوښ یم    سرو قد دې زما یار وزما دار
بس کړه دا چه زهٔ په یار پسې غوڅ غوڅ یم    خدائې دې نهٔ کړم لکه زهٔ یم هسې یار
همره جور چه لکه یار ما سره کړه    یاد مې نهٔ دي همره جور دا غیار
دلبران کودي جادو کړي زړونه اخلي    هغه دایه چه بې کوږ وودي دلدار
چه د زړهٔ نوله ننا مخلوب پروا دې    تر و که زړهٔ د زړهٔ یوسي څه پکار

په ګریوانې تل داوښکو باران ووري
نه ورکیږي د **رحمٰن** دَ زړهٔ غبار

چه دَ زړهٔ پورې ترلې استوار    داجهان دې دبنګه دې که دَ پلار

تہ خپل پلار و نیکہ د کورہ چہ څہ شول ‌ ‌ ‌ ‌ ھسے شاد ھم پہ دوئ پسے رفتار
تل پہ مینہ دروستي پل دے پر تیر یږی ‌ ‌ ‌ ‌ کرے نہ دے چا پہ پل باندِ قرار
ھسے نہ چہ زۂ یوازے تاتہ وایم ‌ ‌ ‌ ‌ راغلہ لاړہ شا پہ طور صد ھزار
دعوی مکړہ پہ ناحق بیئے خپل نہ کړے ‌ ‌ ‌ ‌ پردے بنهر ملک پردے پردے دیار
چہ استوگنہ پہ پردی وطن کښے کاندی ‌ ‌ ‌ ‌ ھغہ نہ لری د ھیڅ واک و اختیار
کہ ھزار قسمہ وخوری پہ یو کار کښے ‌ ‌ ‌ ‌ نہ کا څوک پہ مسافرو اعتبار
چہ صبا شگفتہ کیږی ما بنام رژی ‌ ‌ ‌ ‌ څہ امید دے پہ گلونو د گلزار
کہ دِ دور کہ دِ عزیز وی کہ دِ یار وی ‌ ‌ ‌ ‌ مہ ئے زور مہ بیئے عزیز کنہ مہ یار

چہ پیدا شی ھسکی وارہ فنا شی
اے رحمانہ دا جہان دے دا بیئے کار

څوجف قبولہ نہ کړی دا غیار ‌ ‌ ‌ ‌ وبہ نہ وینی پہ سترگو مخ د یار
چہ اول ئے خار زرغون شی پہ پهلو کښے ‌ ‌ ‌ ‌ غنچہ ھلہ شگفتہ شی پہ گلزار
جنت چا پہ ریاضت موندلے نہ دے ‌ ‌ ‌ ‌ ولے بویہ ھرسبنڈ لرہ خپل کار
کہ موندہ شوے خوشخوئي پہ خوشبوئي کښ ‌ ‌ ‌ ‌ پروت بہ نہ وہ پہ چیند نر باندِ بسمار
آب تر لعلو د لالہ گلونو دیر دے؟ ‌ ‌ ‌ ‌ بخت مہ دا چہ څوک عزیز کاندِ څوک یار

ھسے ریب کا پہ بیاض د رحمٰن شعر
لکہ زلفے د خوبانو پہ رخسار

څوک دِ دا کاندِ تسم پہ کږ دمکار ‌ ‌ ‌ ‌ کہ درم لرم پہ کور کښے یا دینار
زہ دینار و درم نہ لرم پکور کښے ‌ ‌ ‌ ‌ ولے نور علم م بولی دنیادار
ھم پہ دا چہ نہ لہ ځای چرتہ خوځم ‌ ‌ ‌ ‌ نہ د ھیڅ یوہ مخلوق یم منت بار
نہ م بنگتہ ملک لیدلے دے نہ پورتہ ‌ ‌ ‌ ‌ خبر نہ یم پہ یمن پہ بیمار
آب و خور لکہ گیاہ پہ ځائے رارسی ‌ ‌ ‌ ‌ پہ خپل سکون کښ م سکون دے ھم رفتار
لکہ گو نہ مستقیم پہ خپل مکان یم ‌ ‌ ‌ ‌ کہ خزان را باندِ راشی کہ بہار
توکل م لاس پښے سرہ کړہ پہ نکریزو ‌ ‌ ‌ ‌ چہ پہ ځائے کښینولے یم قرار
چہ زما پہ باب کښے کښلی دی رارسی ‌ ‌ ‌ ‌ کہ رحمت دے کہ رحمت دے وار پہ وار

چه هر ژده هزار قومونه یې پیدا کړل | مربي ئې دے هغه پروردګار
کار همه په اراده د خدایے موقوف دے | هیڅ موقوف نه دی د چا په انتظار

غم به هیچرے ونه کا په دنیا کښے
که څه کیږی د رحمٰن په دا انتظار

که د عشق لاره اغزنه وی هر کوره | د عاشق په پښو ګلې دی د اور
که دیدن دیار مونده په انتظار شي | زما سترګے دی شبنم غونډې خور
تیغ داو سپینو محتاج د نوم آب دے | قرب وحلم یو په سل دے زیان پردر
له لوئي له سرکشۍ زما توبه ده | خدائے خوک مکړه د آسمان هسے نسکور
خدائي زده څه سودا به پیښه په بازار شي | د بازار خبرے نه شي په خپل کور
دا همه دا پره عاشق لره پیدا دي | که تهمت که ملامت دی که پیغور
جفا ناز وجور دکبر د خوبانو | ما پخوان دی قبول کړي لکه پور
راحت بے زحمته نه دے چا موندلے | غم ښادۍ دی دوے دهر خور و رور

رحمٰن هسے په خپل یار پسے غوڅ غوڅ یم
لکه غوڅ په خپل اولاد وی پلار و مور

داڅه مخ دے منور | چه هم شمس دے هم قمر
داڅه زلفے دی مشکینې | چه هم مشک دی هم عنبر
داڅه پیوسته ابرو دے | چه هم نیش دے هم نشتر
داڅه سترګے دی تا ښتے | چه هم سیف دے هم خنجر
داڅه شونډے دی میګونې | چه هم مې دی هم شکر
داڅه سپین سپیځلی غاښ دی | چه هم در ګوهر دی هم ګوهر
داڅه سیب زنخدان دی | چه هم سیم دی هم ثمر
داڅه قد وڅه قامت دے | چه هم ګل دے هم عرعر
داڅه ملا ده باریک وضعه | چه هم موی دے هم کمر
داڅه زړه دے د خوبانو | چه هم موم دی هم حجر
داڅه یار دے نه پوهیږم | چه هم دل دے هم دلبر

داخه بُت دے زمارب | چه هم بُت دے هم بشر

داخه شعر دے رحمانه
چه هم کنج دے هم هنر

دغه یار دے دا هنیار | دغه گل دے دغه خار
دغه گل دے دغه خار دے | دا منصور دے دغه دار
دا رقیب دے دا حبیب دے | دغه گنج دے دغه مار
دغه عشق دے دغه عقل | دغه غم دے دا غم خوار
دا هجران دے دا وصال دے | دا خزان دے دا بهار
دا طاعت دا معصیت دے | دغه نور دے دغه نار
دا عالم دے دا جاهل دے | دا خفته دے دا بیدار

دا رحمن دے دا جانان دے
دا طبیب دے دا بیمار

هرچه نه وی خوار و زار | په طلب دخپل دلدار
تر یه رونی صدقه شه | دهغه عاشق دستار
هزار حیف دے هزار حیف ئے | هزار څه لا صد هزار
چه عاشق په عاشقئ کښ | نه حلال وی نه مردار
نه پتنګ دَ خپل چراغ وی | نه بلبل دَ خپل ګلزار
نه مجنون غونډ رسوا وی | نه منصور غونډ په دار

دواړه نه کیږی رحمانه
یا به یار شی یا بیزار

زهٔ عادت نه لرم په عشق کښئے له پیغور | بے پروا یم دستی په خیر له اور
کدی په خوله دسمندر مهر دَ مرمر | چه غوک مامنع کوی دعشق له شور
بے هجران زما بله خواری نشته | ولی نشته تر دا بله خواری نور
که ته چه خدائے هر کوره بنا ئت کړے | زهٔ هم هسے بی صبری کړم هر که ډر
چه په تور سپین مراروی دا څوک دی | که ته ندئے په مخ سپین په زړهٔ تور

درقیب له بده خوئیٔ به څه وایم — لا چه یار د رسره مل شي هاله نور

چه ئې پور د مرګ تر پور پورې وایم — هم توبه د بیلتانه له بده پور

عاشقي سرې مجنون کاندي رحمانه

ګنډه خوک په هوښیارئی وو زي له کور

ماچه جور و جفا بیا مونده له یاره — دو وفا طمع به څه کړم له اغیاره

له دښتو به د ښادئی طمع څوک څه کا — چه د دوست د لاسه غم شي ورد د غاره

دا ګلونه دېره نه یره له هغو شي — هر چه طمع ترې د ښو کېږي بسیاره

دل آزاره که دل آزار کا مانه نه شي — حیف خو دا دے چه دلدار شي دل آزاره

طالبان خو تر مطلبه پورې پره دي — خدائے د تا بې دنا نه کا رفا داره

که له دېرې حیانه ګوري د چا سته

خوخ خو مخ کړه د رحمن د زړه د پاره

هسې تله کاندي د ګور ته یاران زر زر — لکه تله کاندي خیل ګور ته یاران زر زر

هسې زر زر مرګ په مو بېزه شتابي کا — لکه لو د پاخه کښت کا دهقان زر زر

هسې زر زر دا دنیا د بله ادري — لکه ادري د بله ریګ روان زر زر

هسې زر زر صورتونه دي نړېږي — لکه ریژي لاله زار په خزان زر زر

هسې زر زر دا شیرین عمر تېرېږي — لکه بحر چه بهېږي روان زر زر

هسې زر زر ښېښول د بنړونه وي

لکه درو مي له جهان رحمن زر زر

چه په زور ورسره نه ئے برابر — د هغو تر څنګ مه کښېنه زړه ور

زور آور او زور داوبه دي فهم وکړه — چه د وب نه شي یا و نه سیزي بشر

زندګي که ئې بې ادبه او ر نه شي — تل هم نه دي هیڅ ابني په تنهر

خدائے ورمه دله سیلاب چاپه خونه — که په قطع هم اوبه دي هم کوثر

او د نه ئکېږي او د په کور د هیڅ — که زنائي وي د دښمن و د قمر

چه ئے درست صورت غلبیل شي په اغزیو — و خور مه شه د هغي و ني نشر

د هغه دیوال په سوري څوک کښې مه نه — چه و لاړ وي لکه زوړ نه چاوڅ د کمر

چه په کبله د خوشبویٔ غوټۍ ورک شه ... که د سرو زرو چاړه وي یا خنجر

ناکوده سرو ونه دیردي په جهان کښې ... سره هغه دي چه د خیر دي نه د شر

واوبو ته اچوه نه شي ځان خوږ ده ... ګنړه دیردي په دریاب کښې د ګوهر

چه له آب وله حرمت سره نه وي ... خدایٔ ورمه کړه وچاهے سیم د زر

زدره ورکه رسوي وچا ته فیض ... له دے فیض سره وګنړه ضرر

په یارۍ د زورآورو غلط مشه ... مګر دا چه تردا ته يئ زورآور

په هروخت چه ته غالب وے مغلوب وي ... ترو هاله یئ قدمونه ږدي په سر

یاخو دا چه قدمونه په درنه ږدي ... دغه پس یئ ځان وګنړه پدر

چه هنر ګنړي یاري د زورآورو

زهٔ **رحمٰن** کوم بول په دا هُنر

په نظر د بے بصر ... لکه شام هسے سحر

لکه شام هسے سحر ... لکه سنګ هسے ګوهر

لکه سنګ هسے ګوهر ... لکه خاورے هسے زر

لکه خاورے هسے زر ... لکه خیر هسے شر

که خوږ نه ورسره کاندې ... تر بدئ وي بتر

که خوږ به ورسره کاندې ... تونیکئ وي بهتر

نه پرے بد و زهیریږي ... نه پرینه د چا وي چاړبر

په صواب په خطا یئ! ... نه دلیل وي په نظر

نه اګاه په خپل بهبود وي ... نه اګاه په خپل ضرر

نه په غیب باندې پوهیږي ... نه پوهیږي په هنر

لکه ړوند وکونړ چه ګوري ... هسے هیڅ نه وي خبر

له طاعته له ګناه ... چه خبر وي ګناه‌ور

ځنا ورو نه نورځه زده ... یا ئے خوب وي یا ئے خور

دا خو ته ئے زما نفس ... چه د زهٔ کرم کوروګر

تمام دُوتي له عقل ... په دنیا پېي اوتر

نه دِ فرض دَ خدائے ادا کړه — نه سنت دَ پیغمبر
نه دِ مرګ په زړه یادیږی — نه خوارئ دَ محشر
او ده پروت یې دا د نه زده — چه پخوا لرم سفر
په هر دم درغخه درومی — که پوهیږی دا بشر
هغه تور ویښته دِ څه شول — چه هم مشک وو هم عنبر
هغه قد دِ مجنون بید شه — چه چنار وو یا نښتر
تن دِ هسنت زیر و زبر شه — زړه دِ نه شه لړو بېر
تر پنځوس تر پنځه تیر شوے — ته لا خان بولے په سر
نه دِ ترس شی نه دِ ویره — نه په زړه باندِے اثر
بل به نه وی لکه ته بیخے — هسے شوخ دغکر دی
په غفلت دِ عمر تیر کړ — نه رهبر وشوی نه رهبر
عبادت دِ په ریا شه — لکه ډک په لاکو زر
لکه قلب ناسره مهر — پټ په زرو کښے حجر
لکه پټ وی په دا نه کښے — سل اغزی د شجر
لکه سحر چه برپائی کا — سحر کړو جادوګر
لکه نقش صورت بے روح — چه تصویر کا مصور
لکه نقش کدو بې مغز — میان خالی وتن پرور
لکه زړے په میوه کښے — درون ننګ بیرون ثمر
لکه بے لاس لستونړی — سرترپایې پائي ترسر
لکه تک د دغاباز وی — په مرغانو کښے د ګر
لکه بې ننګ ناوے — چه په سر کاندِ میزر
تو میزر لاندِ چا څه زده — چه دختر وی که مادر
نه ئے حسن نه جمال وی — غلوی خلق په زیور
هئی له هسے فریبیانو — لکه زورند جادوګر
نیم په زمکه کښے دننه — نیم برسیره لکه غر

پہ دستارکښې مسواک دي　　تر بغل لاندې خنجر

پہ ابرو کښې پټ بخري　　پہ دنبو کښې پټ شرر

پہ شپہ دیننې د مظلومو خوري　　صباح کښیني پہ منبر

پہ زړه تور لکہ تبې وی　　پہ مخ سپین لکہ قمر

د دنیا پہ طلب ګرزی　　خپل ځان بولی قلندر

کلمہ پہ ژبہ وائي　　پہ زړه نہ لری باور

پہ مثال د منافقو　　نہ مسلم وی نہ کافر

نہ مسلم وی نہ کافر وی　　نہ پخلا نہ مرور

پریشان ګرزی سرګردان　　کوی پہ کوی دربدر

هیشہ رفت و آمد کا　　د زردار و پہ ګذر

پہ کوښہ د دنیا دارو　　ګوخوری کا لکہ خر

اورنګ زیب هم یو فقیر دو　　چہ تو پئي ئې وه پہ سر

د تو پئي و تہ پہ شا کړه　　چہ قادر شہ پہ افسر

خوئي هم د فقیری وه　　چہ شہ نہ وو میسر

چہ ننګ ئې یاری ور کړه　　نور ئې ملک کړه مسخر

ګوره څہ چارې ئې وکړې　　پہ عیال د خپل پدر

دارا پہ دار تر تیغہ تیر کړه　　د خپل تمام برابر

یو تہبر د خورم خاوند و　　د یر عالم ئې کړه زبر

تمامی جهان ئې و نغړو　　چہ ئې لاس شہ باندې بر

پہ فریب فریب ئې خپل کړه　　بیجا پور او بهاګ نګر

بیجا پور بهاګ نګر څہ وو　　لا چینیا و چینیا ور

هم ئې هند پہ ډکہ واخست　　هم کابل و پیښور

بیا ئې ذکر شو پہ زړه کښې　　بادشاهي د هفت کشور

د حرص ورتہ هیڅ شو　　هم دارا هم سکندر

خیال ئې دا وه پہ خاطر کښې　　چہ بہ خپل کړم بحر و بر

باری درځ ورځنی لا ړه ! | وقت پرے راغے ماز یگر
نه یې مراد د زړهٔ حاصل شه | نه یې ټیغ کړه منل تهتمر
همګی شو ځنے پاتے | که ئے ملک وه که لښکر
خالی لاس د دنیا دروت | لکه عین درویز گر
له دنیایي هیڅ یو نه ورو | مګر شو لے یو خادر
خوار حیران په زمکه پریوت | بی بالین و بی بستر
نه پوزے شه تر د لاندے | نه تر لاندِ شه تبخر
د پټرے په شیر خفیف شه | چه ثقیل وه لکه غر
د سیلاب په ځکنے لاړ شه | لکه خس وی یا وزر
حق یې پاتے په گردن شه | د سپاهی و د چاکر
اوس ئے زهٔ په حق دعا کړم | که یې خدائے کا بهره ور
حق تعالیٰ که ئے نصیب کړه | دغه شیرین حوض کوثر
د جنت په خوشبو بیَ یې | خدائی دماغ کړه معطر
په درست هند باند ئے حق وه | هند یو شپه وی دی وه نمر
دوے نمر په روښنایي | تمام هند وه منور
په رنړائي خلقو زیست کړه | نه څه خوف وه نه خطر
خوچه مخ یې په غروب کړه | نور پیدا شه شور و شر
چه په نوم ئے اورنګزیب وه | وخوړ کاؤ هغه دفتر
اوس نوبت د شاه عالم دے | دور تیر شه د دګر
خدائی زده څه بازی شی پینه | عاشورا شی که اختر
رنګارنګ بازی کاندی | دا آسمان دے بازیگر
کهی تلخ لکه زهر | که شیرین لکه شکر
چه څه وشو هغه وشو | لابد کیږی مقدر
ماخو نوم د اورنګ واخست | دا حوال دے دهر دهر
هر سرے د چنلی خوني | هم بادشاه دے هم سرور

هرچه اهل دَ دنیا دی　　　داره هسے دی اکثر
دا بیان د در و دران وه
رحمٰن دکرم مختصر

خدائې زړهٔ دَ رقیب نرم په احسان کړ　　　ماله یاره یار له ما سره یکسان کړ
هغه درد چه دا آشنا د بیلتانهٔ دے　　　دفع رفع ئے دَ وصل په درمان کړ
غم دَ هجر چه تیرے تر اوره سخت دے　　　له دے غمه م په امن په امان کړ
کاروبار دَ عاشقئ چه ډیر مشکل دے　　　دا مشکل زما په ما باندے اسان کړ
حجاب لرے کړه زما د یار تر میا نه　　　بے حجابه مخ د یار را ته عیان کړ
که مطلب د نور چا نور ے مرتبے دی　　　ما گدا په آستانه دَ خپل جانان کړ
که دا نور عالم و بله خواته ځوری　　　ما پد لوری دد لبرو نګران کړ
زهٔ چه یار لره ورځم په هغے لارے　　　مهتر خضر مهتر الیاس م رهبران کړ
تاریکي د معصیت راځخه واخلی　　　د طاعت په روشنائی م زړهٔ روښان کړ
چه زما په پریشانئ ئے زړهٔ نه کیږی　　　زړهٔ ئے ما غوندې په یار پسے پریشان کړ
چه زما په چمن راشی گستاخی کړي　　　د شبنم په څیر ئې عمر یو زمان کړ
چه آزاده دَ منکر تر سره پریوزی　　　د تلک په څیر م توره دَ زبان کړ
هغه غشے چه د ترکو دَ غمزو دے　　　هر کلام م دَ هغه غشی پیکان کړ
چه کشور د افغانانو معطر شي　　　د هر بیت مصرع م زلف د خوبان کړ
چه هر حرف ئې د نافو هسے خوشبو وی　　　برکت م په جزدان په قلمدان کړ
ته چه ما منع کوے دیار له لوری　　　کاشکے باد د سحر منع په بوستان کړ
نه به ما منع کړے ته له خپله یاره　　　نه به کوز په زمکه پورته دَ اسمان کړ

الٰهي دَ خپل حبیب له برکته
دا ساده انشا نګینه د رحمٰن کړ

ما په تا پسے دا پیڅے جامے رنګ کړ　　　ته لا بیا په ما کمان د نام و ننګ کړ
هیڅ اثر د سنګین خاطرو نه شه　　　که هر څو م مصلے درپسے تنګ کړ
دلسوزی به دې په نورو کړي څه شی　　　چه له ما غوندې مخلص سره جنګ کړ

دا نارے سورے پہ عشق کښے دی غازے ۔۔۔ کنڑہ تل بہ د بلبل پہ شیر پتنګ کړ

عاشق و معشوق تہ سینہ لاس دہ ۔۔۔ تہ و ماوتہ دا سپینہ لا رګرنګ کړ

چہ یو دم مِ لہ نظرہ نیو خوا شی ۔۔۔ دا جھانکہ لحد راباندِ تنګ کړ

پہ بنہ خوئ سرہ دَ خلقو افسانہ یُے ۔۔۔ خدائی زما لہ کم نجتیٔ پہ زرہ سنګ کړ

دا دِ خوګ لہ سنګ ناست دی نہ پوھیږم
چہ خبرے د رحمٰنؔ سرہ پہ جنګ کړ

تاچہ مخ د پري ستر کے دا ھو کړ ۔۔۔ نہ پوھیږم چہ آھو یئے کہ جادو کړ

د عا کوچہ د چا و مری څہ بنا دي دہ ۔۔۔ تہ پہ څہ زما و مرګ وتہ ارزو کړ

پہ محراب د عاشقانو کا نري ږوزي ۔۔۔ تہ پہ چین د جبین څوتہ پہ ابرو کړ

تاچہ رنګ د ګلو واخست نہ پوھیږم ۔۔۔ زرغوند بہ پہ چھرہ زما ګنګو کړ

تالہ ډیرہ ډیرہ جورہ معلومیږی ۔۔۔ چہ بہ ما ځنځیلو او بنګو کښے زاھو کړ

کہ یو ځل تو رے زلف کړہ پریشانہ ۔۔۔ خاکستر بہ پہ چمن کښے کشالو کړ

درست جہان بہ قاف ترقا نہ معطر شی ۔۔۔ کہ یو ځل شانہ کړہ پہ ګیسو کړ

تا د زلفو مار خوړلی بہ روغ نہ شی ۔۔۔ کہ افسون دَ مسیحا و ربانديِ پو کړ

لاس و پښے دِ بي زیورہ ښا ښتہ دی ۔۔۔ څہ منت بہ د پایلو د باھو کړ

کہ سوزن دَ ښڼرو راوړی تار دَ زلفو
د رحمٰنؔ دَ زړګی زخم بہ رفو کړ

کہ دَ عشق شکرے تیرے تر ګلو کړہ ۔۔۔ شور لذت بہ لکہ زھر ھسے تو کړ

کہ دِ وشی ملاقات لہ سرو قد و ۔۔۔ د فاختے پہ شیر بہ کوکے پہ کوکو کړ

عاشقی بہ تیرہ توره د رپلارے کړہ ۔۔۔ نور د صبر د سکون پہ ملک بہ ھو کړ

پہ انصاف و عدالت بہ نوشیروان شی ۔۔۔ ھر عمل چہ دَ خپل ځان پہ ترازو کړ

د سکندر پہ شیر جھان بہ دِ دوزی شی ۔۔۔ کہ سر کوز پہ آئینہ د خپل زانو کړ

تریخ لوګے بہ دِ د تند پہ شیر نغرہ د شی ۔۔۔ کہ صورت د عشق پہ اورکښ تماکو کړ

وُ بہ نہ وینے د ترکو برندے سترګے ۔۔۔ مکر خان پہ خپلو وینو کښے سالو کړ

روغ بہ نہ شي بي دیار لہ بنډ دیدن نہ ۔۔۔ کہ سل پنډہ سپیلنی وځان تہ لو کړ

د غفلت لیچن لیمه به د بینا شی ‏ ‏ ‏ که دیدار د کوڅې خاورې ښخکو کړه

دا دارو به د دوائي کوی طبیب ‏ ‏ ‏ چه دیار په درد و غم کښې بیمار کړه

نصیحت په عاشقانو اثر نه کړه ‏ ‏ ‏ دا محنت واره بیجایه بې تا بو کړه

په رحمن باندې بې یاره خواب حرام دے

که یې سل بالښت لاندې تر پهلو کړه

که نظر په مانو کښې د روزګار د کړه ‏ ‏ ‏ هره نه دی چه حساب یا به یې شمار کړه

په هر غم کښې خاموش اوسه او که نه وی ‏ ‏ ‏ د بد خواه خاطر به ښاد دوست به آزار کړه

صبر و نیسه په غم کښې که مراد غواړې ‏ ‏ ‏ په تنوار به هیڅ او نه کړې که تنوار کړه

رضا پاسله و قضا ته فراغت شه ‏ ‏ ‏ او که نور څه نور دوائي ځان به خوار کړه

آزادی او کاروبار دے سره لرے ‏ ‏ ‏ لاس له کاروباره وکاږه که کار کړه

چه پخپله نه فانی بولی رحمانه

ترو بیا څه به هغو چا روا اعتبار کړه

ساقی پورته شه د میو جام تیار کړه ‏ ‏ ‏ عمر هیڅ معطلی نه کاندې تلوار کړه

هر دم تیغ دا استازما په مکو کرزی ‏ ‏ ‏ هر نفس د چل نفس له تیغ دار کړه

تر خودی په هورته بله بلا نشته ‏ ‏ ‏ خادی د بیخودانو په دلسبار کړه

دا ښیخه ورکې ژوندون چه غنیمت دے ‏ ‏ ‏ شکرانه په دا نعمت د کردګار کړه

که غمخوار غواړې په غم و پراند وه کښې ‏ ‏ ‏ ښینښه د که د شرابو اختیار کړه

خود د وه سترګې غریبزی په جهان کښې ‏ ‏ ‏ ننداره په هر ساعت د خپل نګار کړه

هغه څوک دی چه تهمت پرې وایه نشی ‏ ‏ ‏ غوږ په هیچا باندې مه باسه خپل کار کړه

مدعی چه په خوله ورته هغه وائې ‏ ‏ ‏ ګوش و هوش د محبانو په ګفتار کړه

بې وفا دی دوه دهر یاران واړه ‏ ‏ ‏ چه د پښی له مرګه یار شی هغه یار کړه

رحمان وائی د دنیا چارې فانی دی

البته په دا خبرو اعتبار کړه

خو په وران شی د دنیا بازار لتاړ ‏ ‏ ‏ هر ساعت د بلیتا نه په تاخت لتاړ

لا غنچې په باغ کښې سترګې سپړدی نه دی ‏ ‏ ‏ باد خزان ئې ذره ذره مبینه کړه دیجار

هسے باد پرۂ تناله لوری والوت  —  دلاله تولهٔ ئے پریښتلهٔ له نارَ

څهٔ بزرگی به یئے دَ بازو د هما یئے وی  —  زیاتی ذکر که سل زنګ کا خرارَ

که سل زر کاله پر تیر شی په او بو کښے  —  په نرمی به نرمه نشی وچه ترارَ

تر دا هسے عمرَ نهٔ عمر بهتر دے  —  هر چه حال یئے زنګدن شی عمر دارَ

ترو له خلاص بندی بنهٔ یئے اے رحمٰنَ
چه دَ یار دَ زلفو ذیل دِ شی په غاره

په پیری کښے چه هوس میو ناب کړ  —  بیهوده ګمان په صبح دَ مهتاب کړ

بے طاعت عنایت له خدائے غواړی  —  د عتاب ځائے امید ته دَ ثواب کړ

دانسته ګناه کوی بو بے ادب سی  —  لکه بت هسے په غټو سترګو خواب کړ

په هغو غوږو چه ذکر د خدائے اوری  —  بیا سماع په هغو غوږو د رباب کړ

په هغو شونډو چه حمد و ثنا وائی  —  هم هغه شونډے بیا دوبے په شراب کړ

علم وکړي هیڅ عمل ور باندِ نه کړی  —  لکه طفل هسے لوبے په کتاب کړ

په شپه پروت یئے د مغان په میخانه کښے  —  او په ورځ مخ په لورے دَ محراب کړ

تمام عمر دَ دُنیا په طلب ګرزے  —  بیا د خدائے په طالبانو ګمان حساب کړ

له خالق نه دِ نهٔ شرم نهٔ حجاب وی
له رحمٰن ګوښه، وشیی حجاب کړ

چه غرقاب شی تور مشرکان په نم دَ زړهَ  —  نور خراب شی خان و مان په نم دَ زړهَ

عبث وائی غم د زړهٔ و بل هوس ته  —  څه پوهیږی هلکان په غم دَ زړهَ

په بل مخ باندِ سیوا دیار له مخه  —  ما ترلی دی چشمان محکم دَ زړهَ

چه یئے عرش و کرسی لاندِ تر قدم دی  —  بالا تر دی هسے شان قدم دَ زړهَ

د خلیل تر کعبے دا کعبه ده لویه  —  که آباد که خوک ویران حرم دَ زړهَ

که نور خلق قدمونه ږدی په زمکه  —  ما دی ایښی په آسمان قدم دَ زړهَ

دا مکان دے چه دا آسمان زمکی تر میانه  —  یو خلوت دے دا مکان مسلَم دَ زړهَ

زهٔ مرهم دَ زړهٔ له چا غوارم بے ربَ  —  چه کړے نهٔ شی طبیبان مرهم دَ زړهَ

صورتی همدمان دیر دی په دنیا کښ  —  دلے نهٔ مومی رحمٰن همدم دَ زړهَ

لکه کاڼدې په کوترو نظرباز — هسې زه يم د دلبرو نظرباز

زه نور څه وته د راز خبر نه کړم — بې هغو چه موي مژګان لري دراز

بل بادشاه له محال دي مُلک د زړونو — مګر مخ د چا محمود شي خال اياز

ستا د زلفو ترتيب پورې رانبکاره دي — نورې زنې د خوبانو لکه پياز

د تصوير له ګلو طمع د بوي مه کړه — له منقوشو مرغونه څيږي آواز

هغه يار چه په خپل ناز خوش وخرم وي — زه هم خوښ يم هميشه د يار په ناز

که څوک آه و فرياد نه کړي په عشق کښې — زه په عشق کښې دغه کار لرم غماز

ښادي هر چرې د غم په اندازه وي — هسې غم د دې دنيا وي په انداز

نېتي هسې د هستئ په دنبال ګرزي — نه ډوبيږي په اوبو کښې تش جهاز

دا تا عدد ده لکه نور همره ژوړ وي — يو صورت وي هم نشيب شي هم فراز

هميشه مې لاس نيولې ده دا خواست کړم — چه مدام دې د يار نياز وي زما نياز

چه يکسان ګوري هم شاه وهم ګدا ته
هسې يار دې د رحمٰن غريب نواز

که بچيانې زرکې نه کښې آواز — نه صياد ځني خبر وي نه شهباز

سکه له وه خبره هسې معلومېږي — چه خپل صورت ده هر سري لره غماز

د منصور و حال ته ګوره حال څه شو — خدائي دې فاش د هيڅانه کاندې پټ راز

دريغ دريغ که ورستي عقل ورمبې وي — دا انجام خبر نه شي په آغاز

چه فرزند ئې شراب خوار و قمار باز شي — نور ئې کانړه شي د پلار په خونه ساز

خدايه له هسې زاهو زاده امان وکړه — چه بې دين ئې ديانت شي بې نماز

چه منکر پرې اعتراض کولې نه شي
دا دې شعر مه د رحمٰن که اعجاز

بد اختر به نيک اختر نه شي هرګز — مرغيچه به د ر کوهر نه شي هرګز

که مکان ئې په آسمان وي نزا وشوه — ستاره به شمس و قمر نه شي هرګز

که ئې اصل له يوه زمکې وي څه وشو — بيد به سرو صنوبر نه شي هرګز

که هم عمر باران ورباندې دوري — خر به کله پيغمبر نه شي هرګز

له ناا هلو د و نا طمع دُ مه کړه
کنده نل به نیشکر نه شي هرګز

که تو ر غر له خا یه خوزي دُ به خوزي
ولې نور به مقدر نهٔ شي هرګز

دَ رحمٰن په باب چه وشو هغه وشو
مکر به دا دفتر نهٔ شي هرګز

که ښوک فخر کا په ننګ د په ناموس
دا په عشق کښې نه ارزيږي يو فلوس

که اغوستي يې زري جامې وي ښهٔ شو
ګنړه يا مرغ زرين دے يا طاؤس

که ئې تاج وي په سر ايښي غزا و شوه
.په نظر زما هُد هُد دے يا خروس

که يې نهم فراست وي نه يې عقل
خالي نقش لکه عکس دَ معکوس

نه ئې مغز نه دانه وي په خرمن کښ
عبث هسے خالي لوني په سر بوس

د مجاز له ياره طمع دَ خير مهٔ کړه
تمامي شر و شدت دے دا لوس

و دا ني يې همه واړه ويراني ده
راشه ذکوره ما نړۍ دده تيا نوس

که زما په ګفتګو کښې زيات وکم وي
ښوک دِ ګله کا په دا بنهر کښې جاسوس

ساقي جام د باده راوړه چه بيخود شم
خدايۀ ښوک مکړه په خودي کښې محبوس

که ښوک د غواړي تمامه دنيا واړه
زما يار غونډِ به نه وي بل عروس

رحمٰن حسن دَ يار وينم په پرده کښې
نهٔ پټيږي نور دَ شمع په فانوس

اے زما د زړهٔ آرامه راش راش
سرو قد ګل اندامَ راش راش

چه همه واړه خوبان دِ مقتديان دي
د همه واړه امامَ راش راش

بے تاښته هيڅ حرمت د عاشقانو
د مشتاقو احترامَ راش راش

خدايۀ زده بيا به هسے وقت وي او که نه وي
زهٔ ويريږم له ايامَ راش راش

تن هنګام دے که وفا کړې که جفا کړې
چارے نه شي بے هنګامَ راش راش

دا جهان د مسافر ديو رباط دے
تله دي تله دي له دے ګرامَ راش راش

پري رويه سنبل موي مشک خوئے
عنبر بويۍ لاله فامَ راش راش

شپه لا پريږده رنړا د رخ را ماندِ شپه شوه
د رحمٰن ماه تمامَ راش راش

بیا ئې زړهٔ دَ تورو زلفو مسخر شی
چپ وراست د حبشو تور لښکر شی

هر طرف یې ددو عاشقی گذار کړل
ولې یو هم هسې نه وچه کارگر شی

وهر لوري ته چه غوږ باسم غوغا ده
یا نارې دَ بیلتانه دی یا محشر شی

واعظان خو وعظ کاندې باری څه کا
چه د عشق په لیونوئې گذر شی

چه پدر غوندې ما ته نصیحت کړ
په دیدن دِ ستا هغه زما پسر شی

ستا په در کښې چه پراته دی نیکبختان دی
چه د استاله دره ووت دربدر شی

دعشق زخم به څوک څه گنړی رحمانه
چه گنړون یې په پرهر باندې پرهر شی

په دوران یې هسې رنګ دلبر پیدا شی
گویا بل دَ نمر د پاسه نمر پیدا شی

یا طالع دزمانې یا زما بخت دے
چه داهسې رنګ شیرین بشر پیدا شی

چه قاصد ورک یوسف زیرے پیدا کړه
د یعقوب د نظر بیا نظر پیدا شی

عشق دے داکه یو نساد دے نه پوهیږم
چه جهان کښې چه دا شور و شر پیدا شی

دریغ نخل دعشق مه وی زرغون شوي
چه له ښاخ یې دَ غم ثمر پیدا شی

ملا تګ دعشق له فمَ خبر نهٔ دی
خو هم مال ره دا سخت سفر پیدا شی

یو د ترکو یې نیازی بل عاشق شوه
په پرهر باندې یې بل پرهر پیدا شی

بیا به روغ دَ عاشقئ له رنځه نه شی
په هر تن کښې چه د غه اثر پیدا شی

دنا اهلو زدي پلار به څه ښادی کا
چه له پښت نې لیئم پسر پیدا شی

چه هنر غیب کوی غیب هنر کا
درحمان په دور دا هنر پیدا شی

هیڅ یې نه زده ده پوهیږم دا څه پیرشی
چه دلدار یې داغیار په شکل غیر شی

زمانه یې دَ رقیب له لاسَ وشی
چه یې سپی کا نره هغه دا باندې شیر شی

دَ هجران غمونو هسې په عذاب کړم
هغه غیب چه یې لږ کا نره اوس و دیر شی

چه په تیغ یې لوبے کړے سزا یې دا ده
نه چه غوښ یې زړهٔ د ترکو په شمشیر شی

تیرساعت به دیپا په لاس کښې نه ورزی
اوس به څه وایم چاته چه تیر شی

چه یې نوشه دَ هجران پیاله کړه تلخه
د وصال دولت یې کل زهر و گند ویر شی

چه يې نه په وفا ياد نه په جفا دي
سکه رحمان د هغه يار له دل هيرش

چه نصيب يې سينه چاکه زړه انګارش — جرس څکه په فرياد و په چغار ش
چه نداده عاشقئ په عاشق وشوه — د غفلت له خوبه پاسيده بيدار ش
عبادت د رياکار څه پکار نه دے — لکه غوک هے په بحرکښې مردار ش
د جاهل زهد په زهد حساب نه دے — لکه مال په خمرو خرڅ د خمرخوار ش
مشقت د ناداناڼو واړه پوچ دے — لکه بے باران ابر تش غبار ش
علميت د بې عملو عالمانو — لکه ګنج د کتابونو په خربارش
چه يې کاندي د نااهلو ناقابل ته — نصيحت د ناصحانو څه په کار ش

د رحمن کلام په غوږ د بے هنرو
لکه دُر په لاس د طفل هے خوارش

کوره څه بلند مقام دے د اخلاص — چه جهان واړه غلام دے د اخلاص
که له زمکې و آسمان ته خاته ګران دي — د اسفر په يوه ګام دے د اخلاص
چه خبر کړه مخلصان له علم غيب — داهغه واړه الهام دے د اخلاص
د رواج و رسم عمر مدام نه دي — لکه عمر چه مدام دے د اخلاص
بے اخلاص خلاوه د اسلام نشته — که اسلام دے خو اسلام دے د اخلاص
څه عجيب دے که مستان وي ترچاپيره — هر ساقي څخه چه جام دے د اخلاص
څه عجيب دے که هماپه په دام نښلي — هر صياد څخه چه جام دے د اخلاص
پس له مرګه به دا مهر د اخلاص نه وي — که اخلاص وي نن هنګام دے د اخلاص

د رحمن کلام په دا سبب شيرين دے
چه يې هر کلام کلام دے د اخلاص

که ته نه کړے په بل چا بانډې غرض — بل به نه کاندي په تا باندے غرض
که ګډا د بل به غولي غرض نه کړي — سپي به نه کړه په ګدا باندے غرض
په ساحل کښتي د هيچا نه ډوبيږي — که څوک نه کا په دريا باندے غرض
خلوتيان په خپل خلوت کښې فراغت دي — د رسوادې په رسوا باندے غرض

دا دُنیا په احمقانو ده ودانه
دانا نهٔ کا په دُنیا باندې غرض
زهٔ رحمٰن د عشق په دود کښې هسې خوښ یم
چه مې نشته په دوا باندې غرض

طمع مکړه په دُنیا کښې د نشاط
بیا به نهٔ مومې نشاط په دا بساط
لکه راغلي بیا به هسې ځنې درومي
دا جهان د رهروانو دې رباط
ترهٔ کام لاندې کومې دې ددې دهر
اېښې بویه هر قدم په احتیاط
و دانا وته په دا جهان ښکاره ښېږي
هم جنت د هم دوزخ د هم صراط
په عاشق به هیڅ دهشت د رقیب نهٔ وه
که ئې نهٔ کړې له خوبانو اختلاط
له کم ذاتہ بې دیانتہ بې نمازه
طمع مهٔ کړه د نیکئ د یو قیراط
ځم د ترکو تر رحمٰن هسې چا پېر شه
لکه وُسکنړی جامه په چا خیاط

ارمه که دې پاخه وائي واعظ
هر چه وائي واړه نهٔ وائي واعظ
دے چه ماله خپله یاره لرې باسي
نور به څه راته او مه وائي واعظ
جار وا ته زما له یاره ډیر مشکل دي
زیاتي څه له دوباره وائي واعظ
په خوږ و پښتو خبرو ئې غلط شوې
دا خوازه خواده تراخه وائي واعظ
زهٔ بې عشقه بل یو کار کوې نهٔ شم
ډیر له عشقه تنبتیده وائي واعظ
اعتبار ئې په نرمئ په ګرمئ مهٔ کړه
دا توده توده ساړه وائي واعظ
اورید دې کې یې رحمان دوئیل نهٔ یم
بهتر دا دي چه نور نهٔ وائي واعظ

په تندی چه مدام بل کړه آتش شمع
څکه بیا مونده له هغو آرام شمع
په انوارِ منور اهل ابصار شو
لا به کله شي ښکاره د انعام شمع
پتنګان ئې لور په لور ترمخ غرغېږي
ځکه نهٔ کوي په سول کښې آرام شمع
وسیزه ته زان زما په شغله بانديِ
کړه پتنګ ته په رموز کښې کلام شمع
ستا مجلس د خاصو الخاصو سرفرازو
د رحمان په شیر نهٔ مومي هر عام شمع

هر یو گل وتا د باغ روښن ترمے ترچراغ — روښن ترمے ترچراغ هر یو گل دستا د باغ

ستا د باغ د بنړو زاغ په نظر زما هماے شي — په نظر زما هماے دي ستا د باغ د بنړو زاغ

د دردمند و په دماغ ستا د رخاورے عنبر دي — ستا د رخاورے عنبر دي د دردمند و په دماغ

د عاشق د تندر داغ په آسمان د عشق آفتاب دے — په آسمان د عشق آفتاب دے د عاشق د تندر داغ

د رحمن د زړه فراغ نه شي نه شي بے خوبانو

نه شي نه شي بے خوبانو د رحمان د زړه فراغ

اورنگزیب وشاه جهان غوندي اشراف — صد ته شه تر منصور غوندي منداف

کړ ډزن په لوئے لوئے دے ته بیے شه کړے — مه کړه خداے چه کوه طور شي کوه قاف

یل هوس د عاشقو ته هوس نه کړه — دا دروغ دي چه زر دوزشي بوریا باف

د مکے په بزرگئ کښے هیڅ شک نشته — ولے خربه حاجي نه شي په طواف

که په سل دریاب غسل د ځان وکا — گمان مکړه چه به سپے شي پاک وصاف

کشتۍ هم چه دیره وکه شي و وبیړي — د مسرف په ځان بلا شه خپل اسراف

صابرانو صبر پرینبو حریصان مشغول — د رخه عدل شته په چا کښے نه انصاف

داخلور واړه مذهب سره یو دي — ما وتا پکښے پیدا کړه اختلاف

د همه واړه مکونو ښتن خداے دے — که دوزخ دے که جنت دے که اعراف

شهیدان نه دي همه خون فروشان دي — چه خونی نه خون بهانه کا معاف

دکاذب ژبه په خوله کښے وچه نبه ده — لکه توره د لوګی دي په غلاف

د دیوال په سر به څو زغلی ترکومه — د دروغژن چه د دروغو وهي لاف

آب وتاب د ناکره مهروی همره — څو نظر پرے شوے نه وی د صراف

د دنیا په دولت نازمه کړه رحمن — دا یو موی دے په نظر د مرشکاف

مدح د مجرد حبیب ود رقیب کرم

رحمان نه زده بله مجوه نورا وصاف

چه پائے بند شه د لیلیٰ په اشتیاق — مجنون واچوه و نورو ته طلاق

چه د مې و د طرب په خوند خبر شه — فراموش کړه صوفی نقل د اشراق

جام د میو دے یا رقص د خوبانو — په هر ځائے چه دبه جمع شي عشاق

په نیه ؤ نظر نه کاندِ بې نقده — که ښوک حورې ورته تاپئ یا براق

چه حاصله د دلبر یکانکې شي — دَ دویې خبره نه کاندِ مشتاق

حرکت له ځایه نه کا لکه شمع — که یې اور په سر بلیږي په تاراق

خوښ وي هسې د خپل یار په دردو غم کښ — ته یه وائې چه بادشاه دې دَ آفاق

هسې محو وي د عشق په مي ناب کښې — چه خبر نه وي په وصل په فراق

که ظاهر په صورت وي په معنیٰ نه وي — لکه بنکلي د لا لفظ وي په اوراق

غوټې تن په کار و زار کښې لنا نه شي — نه جار باسي مخ آسونه د عراق

د عراق آسونه کار په اشارت که — په وهل په کوتل کار روي دا یلاق

چه خدائي پوه کړل دَ بنږو په ښښل ږوښو — چه پوه نه خونه پوهیږي په شلاق

که ئې مرغې که ئې مال ځي خدائې ډې نه کا — د طالب د دَ مطلوب ترمنځ نفاق

د قسمت پارچې په لاس بېولې ناست یم — نه پوهیږم چه به جفت وي که به طاق

ته چه بند وائې ناصح د رحمٰن ته

کاشکې نور کړې هغه کښلي دَ میثاق

ته ناحق په ما کینه کړې کینه ناکَ — په کینه به آئینه نه کړې ته پاکَ

ښوک به وجهې چانه تورَ تیره اخلي — خپل عمل دې چه دنیا ئې کړه هلاک

چه خندائي د بلبل په آه سرد کړه — خدائې د گل گریوان پاره کړه سینه چاک

ښکه پېنې شوې اول دَ حباب سترګې — چه له بعضَ په دریاب کښ چوي تنزاک

که تن زمکه کړي زړه تخم باران ادبکې — لکه نخل به سرو کا زي له خاکَ

بالادست به شي هاله په نور د ژنو — که تعلیم دَ زیردستئ واخلي له تاکَ

بیا به نه مومي د ترکو واک د حکم — خو و نه ورزي دَ درست جهان له واک

دهغه جهان ژوندون به هاله مومي — چه لاس وکاګي د دې جهان له ژواک

ته چه ژغوري سر و مل په عاشقئ کښ — عاشقي دا هسې چرې ده کا واکَ

چه دا هسې لوئې میلمه ته کور ته بیائې — اول غولي پاکیزه کړه له خاشاکَ

په دوئ کښې به ورننه شي تر توحیده — خو ه نیره د خلې نه شي اشراکَ

دا هغه وا ره حجاب دې چه لیده شي! — نور د حسن بالا ترمه له ادراکَ

په ظاهر لباس غلط د سړي مه شه — منځ یې ګوره له چغزي او له متاک

اولیاء په جهان ښکاره شرګند نه دي — چه پاک زوئ خپېږ نغاړي له ناپاک

هیڅ وفا یې له چا سره ونه کړه
تر و رحمٰن به څه مانه کړي له افلاک

که په کنج د شاهئ فخر شهریار ک — عاشقان یې د دلبر په رخسار ک

خرقه پوشو په خرقه کښې دي موندلی — هغه خط چه دنیا کښ دنیا دار ک

پتنګانو له خدای ورکړو په اور کښې — هغه عیش چه یې بلبلې په ګلزار ک

نیک ساعت په بد بدل د چا مشه — په وصال کښې غم د هجر درد و خار ک

نن د ګور د مور پوده په معنئ کښې — خوبه چا ئې تورلحد په چا بازار ک

د بېړئ په دوبېد وچه رب راضي شي — بیا ملاح د زړونو که هلته کار ک

هغه مخ چه مادر زاده ښائسته نه وي — مشقت د مشاطې وار ه مردار ک

یار د ناز له خوبه پاسي په سے کرخي — چه نلک د عاشقانو بخت بیدار ک

نیمه شپه یې یار تر سره پورے کښېني — لکه شمع چه څوک بله په مزار ک

د مستئ د هوښیارئ یون شرګند دي — په هر چا کښې چه څه وي هسے رفتار ک

د بلبلو نغمه زاغ کولے نه شي — هر سرود آواز په طور د خپل کار ک

رحمٰن هسے بیوقوف سوداګر نه دے
چه دین متاع بدله په دینار ک

ورځ چه بد شي عاقل او دانا څه ک — چه قضا شي ورد و شار حکما څه ک

مور و پلار خو نیک فرزند له خدائ غواړي — چه بد بخت شي ادے څه ک بابا څه ک

یار له یاره په لوئے لاس کله سېلیږي — چه لاس نه رسي یار څه کا آشنا څه ک

په خیرو په دعا نه شي کړوني خدائے دے — چه خدائے نه کا نبیره څه کا دعا څه ک

بخت په زر و په زور نه دي چا خپل کړے — په دا کار کښ ناتوان څه کا توانا څه ک

اے رحمانه پتنګ عذر شو پرے او سو
نور د شمع خندا څه ک ژړا څه ک

هغه زوئ چه مئین وي څه به خوب ک — چه فرهاد غرندې کو هکن وي څه به خوب ګ

هر نفس دېرې تله دی له جهانَ ... چه ئې هر نفس رفتن وی څه به خوب کَ

چه صبا له ځنې یاره جدا کېږی ... که د سلو شپو کړمن وی څه به خوب کَ

عاشق د خدائ له اوره پیدا کړئې ... چه په اور کښې ئې وطن وی څه به خوب کَ

د رقیب له جوره خوب د عاشق نه شی ... د هغو چه یار دشمن وی څه به خوب کَ

خوب خندا په بېغمئ کېږی رحمٰن

هر چه تاغوندې غمژن وی څه به خوب کَ

چه په ستر کو کښې ئې خار وی څه به خوب کَ ... چه په زړهٔ ئې غم د یار وی څه به خوب کَ

خوب له یاره بېره هم د عاشق نه شی ... چه ئې یار په بل دیار وی څه به خوب کَ

په دنیا کښې خوب هغه کا چه نادان وی ... هغه زړی چه هوښیار وی څه به خوب کَ

کوم طالب مطلوب موندلے دے په خوب کښې ... هغه څوک چه طلبګار وی څه به خوب کَ

دیدار نه دے چا په پټو سترګو کړے ... چه مطلب دَ چا دیدار وی څه به خوب کَ

بله لار د مرګ له لارے ګرانه نشته ... چه په خوئے هسے لار وی څه به خوب کَ

هر نګاه دِ د لبرانو ذوالفقار دے ... هر چه غوځ په ذوالفقار وی څه به خوب کَ

زهٔ رحمٰن دیار بندهٔ وخدمتګار یم

چه بنده وخدمتګار وی څه به خوب کا

هغه خوی چه بے خدائے محبت کَ ... هسې داره بېځایه محبت کَ

محبت بے خدائے داره دَ زړهٔ داړه رنځ دے ... که مدام له چنګ ورنابه محبت کَ

خوشحاری ده چه یې یوله بل کاندے ... هر خودرائي چه له خودرائي محبت کَ

ښځه دیئے ریش کند وجامه پاره وی ... آدمزاد چه له چارپائی محبت کَ

هغه سرائے لړه به تله وربانې کرا زوی ... هر سرے چه لد دے سرایه محبت کَ

بلهوس به نه پتنګ و پروانه شی ... د مکس په شیر له ورایه محبت کَ

چه دَ تورو زلفو سویه په چا وُشی ... هغه کله له همائے محبت کَ

رحمٰن څکه دریبار متابعت کَ

چه رهرو له رهنمائے محبت کَ

دَ همدرد و همدردی به دِ بے درد کَ ... د نامرد و همدمی به دِ نامرد کَ

صحبت بے تاثیره نه دے دا مثل دے
کنکو نمری هم په خیره د کنګو زر د کګ

هر کالی چه خوګ په زمکه باندې کیږي دی
هغه زمکه ئے له جنږه خپل ګرد کګ

په عِلت د ویر ژړلیو خوګ درمه شه
که صحیح که سلامت وی اه سرد کګ

چه دوئ له میانه لرے شی رحمانه
معشوقه عاشق چنپله باز پرور کګ

زړه ئے م تراشی د سبزو په تیره نوک
ما توی ئے م درویش غابن واره د په سوک

په غمزو د تورو سترګو یمه وژلے
ژوبل ژوبل پروکی پروکی ئے م تهوک تهوک

که ناره وهم که خاورے په سر نسولم
ناروا شه که پروا لری یو څوک

لکه ګل چه خوګ د طفل په لاس ورکه
هسے رنګ د زما زړه کړو شوک په شوک

د اسمان په پیلی سور لکه آفتاب شی
د زر نفتو دستار کیږدی په سر هوک

کمله دیره د ده دو غم ئے م زړه وچوی
ورته هیڅ دی زما درد و زما دوک

درست جهان بے په غم دوب کړو سر تر پایه
که څوک دا دے ددے دهر که ملوک

که انصاف لرئ په زړه کښے منصفانو
را شئ ګورئ د دلبرو دا سلوک

زه بیرولے د خپل ثنا نه د وا شیم
چه سحر سحر ناری د هی تل غوګ

چه مئین د د لبرانو په جمال شوے
اے رحمانه ځان وژاره کوک په کوک

په رښتیا زما د یار نه دی خبر خوګ
که خبر شی پرے به نه پږدی دغه ور خوګ

د دنیا چارے همه واړه فانی دی
بر ناحق خاورے نولی په خپل سر خوګ

چه قبول شی په درګاه د محبوبانو
دغه په خیر به نه وی بختور خوګ

که زما د یار په مخ د چا نظر شی
و به نه کاندی بل خوا ته نظر خوګ

د دیدن طاقت ئے هیچا څخه نشته
وا آفتاب ته کتی نه شی برابر خوګ

که هر څو دلبران دیر دی په جهان کښ
بل به نه وی زما یار غوندې دلبر خوګ

عاشقی یوه پایه ده عجب شے
دغه کار کولی نه شی هم هر هر خوګ

له هجران بله سخته بلا نشته
خدائے د له کاندې زخمی په دا نشتر خوګ

مخ به بل خوا ته هر ګز و نه جار باسی
چه شی ستا په خمار د سترګو اسیر خوګ

وبه نه رسیږی تا ته په آسانه — ستا په غم چه خاورے نه کاندی په سر څوک

ارمانونه به کوی زار زار به ژاړی — چه حاصله کو نته نه کا په ښش در څوک

همره نوم دَ عاشقئ ورباندی مه بږده — چه دیار په غم کښے نه شی قلندر څوک

هغه نه کاندی نظر و سیم زر ته — چه په نور دَ خپل آشنا کاندی نظر څوک

په ګلونو دَ ګلزار به میل نه کاندی — چه خوبونه کا دیار په خاکستر څوک

بے رهبره یُون دَ عشق په لاره ګران دی — دلته بویه چه پیدا کاندی رهبر څوک

چه بېلتون په ستر ګو وینی آشنائی کا

د رحمٰن په خیر به نه وی بے هنر څوک

چه مشغول نه وی د تر کو په جمال څوک — نور به څه کا په دنیا کښ اشتغال څوک

چه یئے تیل و قال له یاره سره نه وی — له نور چا سره به نه کا قیل و قال څوک

دبل خط په عبارت به نظر نه کا — چه نظر و کاندی ستا په خط و خال څوک

چه په اصل کښے خدائے نه وے پیدا کړے — تر و به څه غواړی دا ستا دَ مخ مثال څوک

نور خوبان دی ستا تر مخ پورے هسے — لکه بل کا دا آفتاب په مخ مثال څوک

چه عنقا شو اهل دل پدا دُنیا کښے — ترو به څه ووائی چا و ته احوال څوک

که عاشق په هیڅ کښے ژاړی هیڅ ګرم نه دے — په دا هسے درد کښے نه لری مجال څوک

سرخرو یُ دَ هر سړی په جګر خون ده — نه هغه چه په سرو پچوی سور شال څوک

مخ رونړی دی د عاشق په خپلو اوښکو — په دا نه شی چه یئے مږی په رومال څوک

سړی بویه چه په نیک عمل نازیږی — نسچه ناز کا دَ دنیا په ملک و مال څوک

د دنیا چارے فانی دی مرد هغه دے — چه نظر کا په حرام و په حلال څوک

هر چه کړ کا دا ور بشو غم غواړی — له خاطره د بیرون کا دغه خیال څوک

چه یئے شعر د رحمٰن مهند تر غوږ شی

غوږ به نه باسی په شعر دَ خوشحال څوک

چه علاج کولے نه شی دَ قسمت څوک — تر و به څه ووائی و چا ته نصیحت څوک

هم د چا په ځان پیر زور دی باری څه کا — چه دَ خدائے په کړه کښے نه لری قدرت څوک

هغه چارے چه موقوفی په تقدیر دی — کړے یئے نه شی په محنت په مشقت څوک

که نظر کا و قضا و هم رضا ته — په هیڅ بانډې نۀ کا ملامت څوک
د مطلوب جفا وفا واړه هنر دے — څه پوهیږي د حکما و په حکمت څوک
د ابلیس و ریاضت ته دې نظر کړه — چه غرور کا په طاعت په ریاضت څوک
علت لاړ شي عادت نۀ ځي له سري نه — خدائے دې نۀ کانډې په بد چارے عادت څوک

زۀ رحمٰن د بیلتانۀ سیلاب یم وهے
که لاس راکاندې د خدائے په محبت څوک

هسے نۀ چه زما یار واړه جفا کړ — صد چندان لکه جفا هم ړه وفا کړ
لکه تۀ چه په خپل یار بانډې مئین یې — یو په سلو هم ړه مینه یار په ما کړ
زړۀ مې دړے په احسان وے نه په جور — مجنون څکه په لیلی پسے ژړا کړ
درست جهان د خبرو یا نو ناز بردار دے — نه یوازے دغه ناز په ما وشا کړ

نۀ به کوري رحمٰن بشکلي هغه مخ ته!
فرښتے چه یې د حسن تماشا کړ!

زغره واغونده ملا وتړه په جنګ — دغه پس معرکه کوه د ننګ
د بې ننګ وته د ننګ خبرے مۀ کړه — یا ځان وکړه په خپلو وینو رنګ
ننګیالي چه یو غل غم کا په یو لوري — نور هیڅ نه وینې کوهي وي که کړنګ
هیڅ له ځانه له جهانه خبر نۀ وي — چه چراغ په نظر کیږي د پتنګ
د بلبلو و چمن وته پرواز وي — سمندر کا مدام اور وته آهنګ
که جهان و بے هنرو ته فراخ وي — یو لحد دے هنرمند و لره تنګ
هغه بنهر جوهري لره زندان وي — چه یکسان وي پکښے لعل و مردار سنګ
آسمان زمکه دواړه ژرنده د څنګ دي — څه بۀ زیست که څوک په خوله کښ د نهنګ
په بنا دې هیڅ بنا د مه شه که دانا يې — غم ښادي دي دوه دهر څنګ په څنګ

که رحمٰن د هغو تللیو وصال موي
تیر به نه که په دا دور کښے یو درنګ

ینې مې په سر دي ستا د مخ د مینے ګل — بیا مې تور لیمه دي ستا د زلفو په سنبل
تنچه آئینه په لاس کښے داخلي حیرانیږے — زۀ له کومه راوړم صبوري او تحمل

ګوري په چمن کښې مشکل دی که وري د ګلو
خدائے زده چه ګلونه وري که زړونه په مشکل

هم مشک لیدلی هم عنبر دی په جهان کښې
شاباش شاباش ستا په زلفو په کاکل

نه به ستا دمخ په شیر ګلشن وی چا لیدلے
نه به دی ږ ماپه شیرا آهونه د بلبل

هسے تغافل که ستا په جورو په جفا کښے
خلق حیرانیږی د رحمٰن په تغافل

هیڅ ږ نه کړه په دا عمر کښے حاصل
هسے پلتے شوم مردود و نا قابل

مالا بوئ هم د وصال مونده لے نه دے
تش په توره ږ خدائے نوم کړلو واصل

هسے ډوب یم د ګناه په دریابو نو
چه په ستر ګو ږ ګوره نه لیده ساحل

له وطنه ږ په هر زمان وبا سی
رقیبان ئے راپسے کړه محاصل

که بلا ده که جفا ده که وفا ده
داهمه واړه په ما کړه خدائے نازل

د دنیا په پلټنې ږ ځان پلیت کړه
حیف مه دا چه نه عالم شوم نه جاهل

توره بیره ږ شوه سپینه زه حیران یم
چه رحمٰن لا بالغ نه شوم نه عاقل

مه غوږ باسه د نا اهلو تیل وقال
پکار نه دی تیل وقال د بد سګال

یا به فخر په خپل اهل په نسب کا
یا به ذکر کا د مال و د منال

یا به هسے پوچ ګوف کاندې آغا زه
چه مضمون ئے نه مردار دی نه حلال

ره انا و د نادان صحبت د مه هسے
لکه څه شی وبله لال او کوتی لال

لکه لال و کوتی لال چه سره ګډ شی
یا صحبت شی د مهدی او د دجال

هغه غم چه تیریږی بے له جنسه
تر د به څه دی د هغه غم احوال

د دنیا چاره نافی دی مرد هغه دے
چه خبر شی په ثواب او په وبال

اب و سیندلا څه محال لری په تله کښے
د دنیا د چارو هیڅ نه دی محال

د دنیا چارے په شان جواب و خیال دی
څوک به څه کا اعتماد په خواب و خیال

لکه مال و ملک په خوب کښې ورځ ګډ شی
څو چه ویښ شی نه ئے ملک دی نه ئے مال

لکه زرګ چه د اوبو په سر لیده شی
ګمیځ واخلے هیڅ ورنه شی په چنګال

لکه دود چه غرونه څرګند پیږی
تا ریده تار شی په نرۍ یوه شمال

نکه یخ چه د سرو په زور شي جمع
هیڅو یې نه دي د آفتاب په مخ جمال

په یوه ساعت یې سازبیلیږي ویران کا
خاوره خښته دي په لاس کښې د کلال

د مجاز په معشوقو کښې وفا نشته
ما هزار ځله وکتلي دي دا فال

اعتماد یې په بنیادي د په غم مه کړه
نه یې هجر په قراري نه یې وصال

ګاه یې تور کوي په مخ باندې راکښې شي
ګاه لې راکښې شي په مخ باندې رومال

نکه مانکه چه څوک کښې دي په اوبو کښې
زه هم هسې سرزده یم په مثال

چه د مرګ وتاخت و باخت ده ته نظر کړم
صورت ویم د مېږي په شېرپا مال

که وصال م د یار بیا موند هله سیال یم
ګنړه نه یم زه رحمن د هیچا سیال

ژوبل ژوبل د خوبانو په نګاه یم
لا تردا چه زیات غوخیږم چه پناه یم

چه یوسف غوندې هزار پکښې پراته دي
بندیوان د هغه سیب ذقن په چاه یم

چه یې قد و قامت ګوریم په سترګو
عندلیب په بیا هی سرو و خپل آوه یم

د سپین مخ د تور و خنړ وله رغبت
منت بار د هر سفید د هر سیاه یم

د رقیب خبره ورم د یار د پاره
دعاګوه هم د نیک خواه هم د بد خواه یم

بناخ د زلفو یې چپله خدایه ناپېتو کړ
ګنړه زه د یار ترقد پوره کوتاه یم

بې له عشق که م غیب که م هنر دے
نه خبر په عبادت نه په ګناه یم

ځان هر کوره ناګاه ناخرګند یږي
له هغې ورځې دا هسې چه آګاه یم

بې صبرۍ د یار په وصل کښې مهجور کړم
د پسرلي په مرغزار کښې وچ ګیاه یم

له اوله بهتر ورو هم بیا آه کړم
په نارو نارو خروس د صبحګاه یم

په جذب بوجذ بوے راکښېنوم وځان ته
هغه یار م کاهربا دی زه یې کاه یم

نکه باد دوني پوخ شي ځني رژي
زه هم هسې بار تر لي سر براه یم

اوس م ځائے په دا جهان کښې پاتے نه شه
خوزید لې تر چهل و تر پنځاه یم

د رقیب علاج آسان دے بلا دا شوه
زه رحمن له خپله یاره ناویاه یم

که م څوک په فقیرۍ شمیري فقیر یم
که م څوک په امیرۍ شمیري امیر یم

د دلبرو صدق لره یې غواړم / هسې نه چه په دنیا پسې زهیر یم
د خرق خدمت مشکل دی او که نه وي / زه هر دم و دغه چارې وته خیر یم
هم پند اخلم هم پند دایم هر چا ته / زه د ځینو یم مرید او د ځینو پیر یم
په هجران کښې خیال د یار راسره مل دے / په زندان کښې د یوسف سره اسیر یم
په خندا کښې م ژړا ده لکه شمع / له عالمه پټ پنهم د ځان په ویر یم
آزادي ترډا په هورته بله نشته / چه بندي د یار د زلفو په زنځیر یم
چه همیش په غوږ نارې د هجران آورم / رحمن څکه د خپل یار د وغ ته ځیر یم

خوشحالا د وو لتا م غلامان دي
زه **رحمن** په پښتو ژبه عالمګیر یم

زه یو دم د ستا له غمه بې غم نه یم / بې غم ستا له ذکر فکر یو دم نه یم
هر زیارت لره چه ځم مراد م ته یې / زه زایر د بت خانې د حرم نه یم
ستا د در په تورو خاورو بانډې خوښ یم / بې تا خوښ په تماشا د ارم نه یم
چه د ستا په تماشا یم خمر شوے / نو خبر په تماشا د عالم نه یم
بې د ستا له زیبا مخ د بل مخ ته / منتظر د بوے تنے ترسم نه یم
که د استا د ښکلي مخ عاشقان ویر دي / زه په وار [illegible] یم [illegible] نه یم
که له غمه د وند مرم حال وا یه / چه یا دیو یم یا د وب یم آدم نه یم
زړه م ستا په غمزه غوڅ دے غزا وشوه / که په زمی [illegible] یم کرم نه یم
سم قامت لکه الف یم په راستۍ کښې / لکه غنے زه فساد لره سم نه یم
خم د زلفو یم محراب د کږو ورځو / زه د مار د لړم په خیر خم نه یم
کم و بیش که م له لاس د اتعر کیږي / یم سرے شکم لره بے شکم نه یم

زه **رحمن** د بیلتانه له غمه ژاړم
داتعه د دیره کړاند هیڅ کرم نه یم

زه داسې دیوانه د مجنون چا کړم / له رواج له رسوم بیرون چا کړم
نه پوهیږم چه دا چا دے په ما څوک کا / لیونی د خپل نګاه په افسون چا کړم
ګوهي ستر کے کوم بانره کومه غمزه ده / د وب شهید خونید په خاک په خون چا کړم

توان توفیق خود فتنو را غونه نه دو
په فتنو د تورو سترګو مفتون چا کړم

رحمن هیڅ له خپل ځان خبر نه یم
چه دا هسې زنګ زبون و محزون چا کړم

زه له دې دنیا نه تلو ته په شتاب یم
لکه پا نره د زرو ښکلو په رکاب یم

که هزار آبادئ کړم په جهان کښې
غرض دا چه نهایت خانه خراب یم

که مې اصل د حیا تو له اوبو دے
بیا خو دا چه د اوبو په سر حباب یم

دا جهان قصاب خانه کړه خدائے و ما ته
پا بسته ورا ر په غولي د قصاب یم

چه د خدائے له معرفت خبر نه شم
معلومیږي چه بادیو یم یا دواب یم

که صورت مې د سړي دے زه غو ځنے کړم
په معنی کښې د چارپایو په حساب یم

لکه بت چه په د نږه سترګو اوده وي
هسې زه په بیدائی کښې ویده خراب یم

په طاعت په عبادت مې زړه یخ نه کړه
همیشه د معصیت په اور کباب یم

سر د خدائے و عبادت ته ایښوے نه شم
مدام و رب د ګناهونو په درياب یم

چه و خپلو ګناهونو ته نظر کړم
سزاوار د هر عذاب د هر عتاب یم

لکه خوګ چه په خره سوروي مخ یې توروي
زه هم هسې ترخښتن پورې بې آب یم

غزا د شره که ګمتا د کوم په ژبه
زه رحمن چه کړه ارنا ګرم کذاب یم

په یوه غمزه د سترګو ئے فنا شوم
سر تر پایه بے بنیاده بے بقا شوم

ما د یار له غم دم و هلی نه دے
که مې دم و هلی نه دے هم رسوا شوم

بنه چه نن مې تري تومند شوه په عشق کښې
هاله څاڅکی د شبنم اوس دريا شوم

زه د یار و مخ ته ګورم یار و ما ته
چه داخل په تماشا شوم تماشا شوم

په هجران کښې که ګدا وم کند په غاړه
په وصال کښې بادشاه د امرا شوم

بادشاهي د ګدایانو په دعا شي
زه رحمن ځکه بادشاه یم چه ګدا شوم

تر هغه حده په هورته بد سرے شوم
چه د درست جهان په سترګو کښې اغزے شوم

دنیا دا په خپله زیت و روزګار کا سنړ
خو یو زه په دغه بار کښې کوږ لړګے شوم

تمامي جهان لـن راغـلـه نغاړي؟
سپين دېردکي م اغوستي تور کومه شوم

هيڅ حاجت د هنر نشته د نصيب ته
غنا و شوه که ځهنديا دا ورزه شوم

د نوح زوے م د نيک نيکه نسي دو
کنزه زه م د يو نيک نيکه نيسے شوم

کل دسواس له احتياط پيدا کيږي
زه له ډيره هوښيارۍ نه ليونے شوم

ادس عطا دا آدميت دا پانډي وشوه!
چه رحمٰن د هغه يار د کوڅي سپي شوم

د هجران له ډيره غمه ولے نه مرم
له دے هسے رنګ ماتم ولے نه مرم

چه يو يار له بل يار جدا کيږي
دوه دهر له ستم ولے نه مرم

چه په هر سحر زما په ژړا خاندي
له دے هسے صبحدم ولے نه مرم

يار چه يار په ستر کو نه ويني خو مرګ دے
تر دو زه به له خپل صنم ولے نه مرم

چه په لږه ګرمئي شا کانډ و ګل ته
له دے بے وفا شبنم ولے نه مرم

چه د مرګ خواره په خواړه رحمان
لا په خوا تر دغه دم ولے نه مرم؟

اعتماد به په دنيا کوے تر کو مړ؟
دارنتار به پس شا کوے تر کوم

شو به پټ له مرګه ګرزے سپينه ګيره
په رو بنا نه ورځ به غلا کوے تر کوم

چه دوه هر له يا تا نو رفتا غوارے
صيادي به د عنقا کوے تر کوم

د پيرۍ علاج په ځوانۍ په لور نه شي
دغه کار به په عصا کوے تر کوم

ته چه پند و لې ناصح و رحمٰن ته
شکايت به د قضا کوے تر کوم

که م دنيا نځي ساقي په يوه جام
تر دا هو رته به نو رڅه وي احترام

بنه دے مالوه دا فيض د شرابو
چه په دو نيځم د دلق ازرق جام

مے خوارئ که په عالم کښ بد نامي ده
ما تر ډېر بو دے لانډې کړے ننګ و نام

په ميزان کښ يو سر لعل بل سر کا نړي
مساوي په عاشقۍ په خاص و عام

عاشقان د سپين رخسار د تورو زلفو
څه پرواه لري د کفر دا سلام

په مجذون بانډي قلم دا غلي نه دے
که حلال ئے په مخ ورشي که حرام

حلال عشق دے په رحمٰن باندې راغلی
په حلالو کښ مدام وی احترام

ومحمود ته نظر کوه مدام!   چه غلام کړه خپلې مینې د غلام
دنیکانو مدعا خو نیک عمل وی   ساعت نه ګوری که صبح وی که شام
چه د زړه حضوریځ نه وی په نمانځه کښ   پکار نه وی مقتدی وی که امام
چه مجنون غوندې په مینه کښ صادق وی   رحمان وایم په هغه باندې سلام

هم نغمے کاندی هم رقص کا هم خاندی
د رحمان په شعر ترکے د ب کرام

خبر نه یم چمیځ را دستم له کومه   بیا یم کومه خواته استوی چه دردم
لکه روند چه لاس د بل په اوګو کیږدی   هیڅ ژوره لوړه نه وی ورمعلوم
خدائے راپیښه نړئ لار کړه نالیدلے   لکه ورانه ماشوره چه وی سرکوم
خراب زړه یم تور وزلفو ته هوس کړه   باری کیوت د مارغه په ځیر په لوم
هسے کوهے تا عاشقئ را باندې وکړے   چه سنګین خاطرِ یم نرم شه تر موم
چه نئے هیڅم له خدایه ترس ویره نه شی   الغیاث د دلبرانو له رسوم
کله را کاندے شراب د لعلو لبو   کله جام د زهرو راکاندې چه شوم

د مطلوب له طالبا نو چه ځان ښمیری
اے رحمٰن اول سیال شه بیائے موم

هسے تیز دردمی دوران   ګویا برق دے درخشان
د آسیا په څیر ګردش کا   په زمین باندې آسمان
ګکرئ دی د سرپیو   چه دوړ ریږی تردا میان
پیدا کیږی لت کیږی   نه ئے حد شته نه پایان
نه ئے حد شته نه پایان شته   نه ئے سرشته نه سامان
څنی د ول دهی بنادی کا   څنی دیرکا د خپل ځان
څنی شمع غوندې ژاړی   څنی ګل غوندې خندان
که ئے ګوری یو ګلزار دے   که ئے ګورے یو بیابان

یوه هسے تماشا دہ ! چه یئے هیڅ نشته بیان
کیفیت یئے موندہ نہ شی پہ دلیل و پہ برهان
چه یئے کوم خوارفتن دے یا یئے چرته دے مکان
خدائے خبر دے په دا علم
هیڅ خبر نه دے رحمن

ویریاران دُوه د گل خان د جمال خان پکار نه شو په یو وقت د زارستان
دهمه داره یارانو مخ د تورشي که به څوک وبله یاری کا په دا شان
چه یو یار په سوری پروت وی بل په اورکښ دهغوته به څوک نه وائي یاران
هیڅ تعریف م په دا ترېه وایه نه شی صد رحمت شه په یاریٔ د گل خان
تردا هورته دیاریٔ شرط نه څه وی چه په اورکښ دواړه او سوزی یکسان
چه له آل له اولاده سره رسول خدائے دِ نه کا څوک دا هسے مظلومان
چه په اورکښ یو د بل دپاره سوزی مالیدلی نه دُو هسے مخلصان
څرنګ شرخ ور هغه اورا و هغه خلق چه یئے مرنه کړو د اوبکو په باران
الغیاث دے الغیاث دے الغیاث دے چه انسان کا هسے ظلم په انسان
دمزرو د چاره م ږلیدے په سترګو چه یئے اچول دا وروته بنیان
م دے زمکی م آسمان ته تعجب کرم چه نه زمکه په نا روشوه نه آسمان
م دے لویو لویو غردونو ته حیران یم چه ړنه لوښته د دیغ سر غلطان
لدے خپل سپی نفس م زرهٔ بد شه چه او به څکی یا خواره خوری په جهان
عالم وائی چه قیامت به په جمعه وی ولید ما په یکشنبه په دا دوران
هزار حیف دے په دا هسے رنګ چارے واقع کیږی د دنیا په سود و زیان
په عیسی او په جمال کښ گناه نشته دا مکرونه دی د نفس او د شیطان
عزیزانو نے خپله وژله چخپله دا همه داره تقدیر دے د سبحان
هسے نه چه دا یئے نه کړه نور به نه کړی چه لے زرهٔ شی هغه کا نیٔ بادشاهان
شاه عالم اعظم وګوره چه نے سخا کړه په خونو واره ملک د هندوستان
و دا را اوا و رنګ لیب وته حیران یم چه نے څه چارے واقع شولے ترمیان

د حسن حسین غزا و څوک په زړه کړه — چه هغه واړه په تیغ شو شهیدان
ددوی غوښې او بنګو دینو غم دلے — بچیا به هسے خلق شو طوفان
هر چه اهل د دنیا دی حال دا دے — که سړی دی که پیری دی که حیوان
آدم زاد په زمکه یو بل سره وژنی — په دریاب کښ دغه غوښې خوری ماهیان
لکه غوښې چه ماهیان خوری په دریاب کښ — په هوا کښ هم دغه کاندی مرغان
خزنده و پرنده دی د دے دهر — هغه واړه یو تر بل مشت و ګریوان
مرداری د دے دنیا خو هم دغه ده — ځکه بیرته ځنی ګرزی درویشان

مکاری د زمانی څه هره نه ده
چه رحمٰن چاله د اندی بیان

د نیادار د دنیا کار که دے د دین — خوانین زما په ملک دی خوشه چین
هیڅ کم نه دی تر سپین مخ د دلبرانو — بلکه نه دی زما شعر نمکین
مراد له تور د سپینو واره دلبری ده — موقوف نه دی دغه کار په تور و سپین
مرتبه د سپین ان چه چالد ورشی — هیڅ پوره نیمګړے نه ده په ننګین
چه رنګین رنګین مضمون پرے بنکلی دی — څه پکار دی د بیاض ورق رنګین
خوند په خوله نه په سکه نه په خواره مه — آب و خور که د تاج تلخ دی که شیرین
غرض خوب دے که په خس ری که په خاوره — څه حاجت دے په بستر و په بالین
مصری توره هم په بد غلاف کښ زنګ شی — خدائے څوک مه کړه د بدانو همنشین

څه عجب که په ورځ مهر په شپه ماه شی
د رحمٰن آشنا پنهان دی هم چنین

که نظر که څوک په کار د درویشانو — خود به ورځی وقار د درویشانو
هم په دغه لار به ورشی خدا او رسول ته — که څوک یون کاندی په لار د درویشانو
هر ګفتار به ئے د خدائے په ور قبول دی — چه قبول ئے دی ګفتار د درویشانو
هسے ګرم بازار په جهان نشته — لکه ګرم دے بازار د درویشانو
په یوه قدم تر عرش پورے رسی — ما لیدلے دے رفتار د درویشانو
همه خلق ئے زیارت کړی پس د مرګه — چه بازار دی په مزار د درویشانو

بادشاهان د دوه جهان واړه پرانه دي — لکه خاورې په دربار د درویشانو
هر بهار لره خزان په جهان شته دے — خزان نه لري بهار د درویشانو
د جنت د باغ گلونو به یې هېر شي — که څوک ووینې گلزار د درویشانو
چه دنیایې کړه د خدایې د پاره مترکه — صد رحمت شه په روزگار د درویشانو
د تارون وحال تهٔ گوره حال څهٔ شه — راشه مه کوه انکار د درویشانو
په هر چا چه د غضب لیندهٔ کا کښنه — خطا نه درومي گذار د درویشانو

درست دیوان د رحمٰن زار تر دا غزل شه
چه بیان یې کړ دار د درویشانو

اوبښکې نه لري حساب زما د سترگو — بحساب شه سیلاب زما د سترگو
سپاهي همه واړه سفیدي شوه — هسې پرې ولیکه شه کتاب زما د سترگو
که مې سره دي که مې سپین دي که مې تور دي — او بنو یو په وهرا اسباب زما د سترگو
چه رخسار د هغه یار زا څخه پټ شي — حبطه شي آب و تاب زما د سترگو
چه گدا زیې په دا گرمرا دنکو نه شه — مگر کاږي دي حباب زما د سترگو
چه مې نقش په زړهٔ سره شو نه دے دیار څرگ — کان د لعلو شو گرداب زما د سترگو
که نور خلق د آفتاب په رڼا زلیت کړه — مخ د ترکو دے آفتاب زما د سترگو
مایې خیال لره ابلق د سترگو زین کړه — قدم نه بد دي په رکاب زما د سترگو
لکه تښتي وحشیان له مردمانو — هسې وتښتیدهٔ خواب زما د سترگو

ما رحمٰن چه سترگې روڼې څنگ یاد کړے
او س محال دے اجتناب زما د سترگو

هیڅوک مه شه گرفتار د تورو زلفو — مه اسیر شه په کفار د تورو زلفو
هم په شان د تورو زلفو به پریشان وی — هر چه کاندی انتظار د تورو زلفو
د محشر عالم به کله په قرار دي — څوک به څه غواړي قرار د تورو زلفو
څو یې صبح د قیامت د سپیده نهٔ شي — ورځ به نه شي شب تار د تورو زلفو
مگر شمع د سپین مخ شي باندے بله — گنې نشته نور انوار د تورو زلفو
تار په تار که د عاشق د خاطر خونه — چه حلقه شي تار په تار د تورو زلفو

چه تمام جهان ئې نښتی په دے دام کښ — څوک به څه کاندي انکار د تورو زلفو
زه له کوم یوه کمنده سر د کا بزم — کمندونه دی هزار د تورو زلفو
په تندی د محتسب که دُره ماته — چه پرے راشي دره دار د تورو زلفو
همره زړونه یې پیلي په هر تار دی — چه تسبیح کړه خدائے زنار د تورو زلفو
ملک د هند و د حبش ئې وا ړه زیر کړه — چه پیدا شه شهریار د تورو زلفو
ښاماران ځوندے ګرزي په ګنجو نو — ننی هیڅ په زړه ګښ دار د تورو زلفو
که بل مار چیچلے په لاسو یا په پښو که — په زړه خوله لګوی مار د تورو زلفو

د رحمٰن تر قلم مشک و عنبر وورې
چه آغاز ئې کړه اشعار د تورو زلفو

د دلبرو په درګاه — نه حرمت لرم نه جاه
غوښتوي مې د زړه ولي — د چشمانو په نګاه
همره قدر مې هم نشته — لکه قدر د ګیاه
هیڅ خبر له ځانه نه یم — چه ئې څه لرم ګناه
یو نظر را باندې نه کا — از برائے عند الله
که له غم ئې سرپټ کړم — بل سر نه لرم پناه

د رحمان په خیر د نه شي
حال احوال د چا تباه؟

که څوک لاس له سوده وکاږي زیان نشته — په مشک باندې تلنګ د تاوان نشته
جدائي د آشنائي نه پیدا کیږي — نا آشنا لره هیڅ غم د هجران نشته
د وفا خریدار بل خوا د ته دردمې — د امتاع د زماني په دکان نشته
مګر خان و خدائي ته پا سلي په امان شي — ګنه بل خوا ته د هیچا امان نشته
هغه یار به زه د کومه خوا ته غوارم — چه ئې هیچرته منزل و مکان نشته
دلبران که هر څو ډیر دي په جهان کښ — زما یار غوندې دلبر په جهان نشته
چه هم قدری هم زلفو هم سرے شړنده — د غه هسے رنګ آفتاب په جهان نشته
عشق عاشق لره یو هسے ګلستان دے — چه و باغ و ته ئې لار د خزان نشته

عاشقان په عشق کښ واړه سلطانان دی ... په دا بنهرکښ نیتګار د ناتوان نشته
که مجنون غونډې په عشق کښ څوک صادق شی ... دلیلی په دروازه کښ دربان نشته

دانایان به د رحمٰن په قال پوهیږی
د لته کار د هر نااهل نادان نشته

یادوی په خوله مکه او مدینه ... نسکور پروت یې د عورتې په سینه
زوړ ند سر لکه غنچه مراقبه کړی ... پټ یې نقش د زړه رخت وی رنګینه
دا طلسو تبا غوړی نه ئې موږی ... له ناکامه یې خرته کړه پشمینه
عبادت یې څوک تیږه ترمعصیت کړ ... څه خورونیه وڅان تر آشینه
کینه بده ده بیشکه جنګ حرامردی ... نه له نفس وله شیطان سره کینه
د مردانو کار له نفس سره جنګ وی ... نه زنان غونډې له نقش نګینه
تر ناپاکو نارینه ښه ده بهتره ... پاک دامنه پرهیزګاره ارتینه
ده یو ارمه ارتیښه له یوه کوښې ... صد ته شه سل بې دینه نارینه
نیکوکار سړے بهتر دے که خوړ سالړی ... تر سپین ږیری بدکرداره دیرینه

بدکردار که صد ساله دی و رحمٰن ته
څرګند یږی لکه طفل شبینه

عاشقئ د ابا نذے سوړے کښے مرئ ... هیڅ مې نه دردمې بے یاره ترمرئ
څه اثر به نه د غفل وی په سر کښے ... د هغو په سر چه کښینی چا پیرئ
خدائے د ترکومتے سترګے کړے زمرئ ... د مژګانو په پنجه مې زړه وکاږی
علونه به ئے بیغمه نور څه نه دي ... هر چه کاندی د خوبانو چاکرئ
لبږ د صبر سبق مالوه هم راکړئ ... که په عشق کښ څوک د غه طاقت لوئ
خدائے څه د دے کو تپوال په لاس کښ ورکړم ... چه شپه ورځ مې غږ وی لکه طورئ
په صورت مې نرئ تبه شوه د لاړه ... تاچه دواړه سترګے تورے کړے نرئ
د وصال د لالان کوم طرف ته غوارم ... چه بندی شوم د هجران په کمپرئ
نور د شمع په نانوس کله پټیږی ... تاچه واغوستے د خیال جامی نرئ
زۀ رحمن په زړه نره کرم هغو جونو ... چه یې ملاوی د وینته په دود نرئ

د عشق زخم څه د زخم په شان نه دے … د بل زخم په څير سهل و آسان نه دے

عاشقان د معشوقے سره پوهيږي … دغه راز و نور عالم ته عيان نه دے

عاشق نه ده که گوره حيراني ده ! … کوم سړے په دغه کار کښ حيران نه دے

يو عاشق د ځوک راو نه بيني په عشق کښے … چه يې درد په مخ دا د بکور دان نه دے

هم ره ادبځے د عاشق په گريوان وري … ته به وايې چه يو سيند دے گريوان نه دے

دا هجران څه چه ئے مرگ په عاشق گران کړو … که هم ځان ور ځنے دروي هيڅ گران نه دے

نور غمونه که په ځان دسري بد دي … غم د ترکو بد د هيچا په ځان نه دے

دوزخ دا ورکه تاؤ د حده ډير دے … برابر د بېلتانه د نيران نه دے

چه بالا ځي ځوک په عشق کښ کم عقل … دا کم عقل ډير هوښيار دے نادان نه دے

چه بے ياره زه جهان و ته نظر کړم

رحمٰن دايم چه ويران دے ودان نه دے

هغه يار چه بيوفا دے څه يار نه دے … هغه کار چه بے بقا دے څه کار نه دے

که د سر بندل دشوار په ما وتا دی … دا په عشق کښ سهل کار دے دشوار نه دے

انديښنه سړے بيدار کاندي له خوبه … کم انديش که بيدار دے بيدار نه دے

يکه څه عمر دے عاشق لره وصال دے … د هجران عمر د عمر په شمار نه دے

د چشمانو په ځنبل کښ تيرو بير شي … اعتبار د زماني اعتبار نه دے

که د سلو زو يو پلار ځي به يې څه کا … بيرتوف زدی د پلار غه په کار نه دے

معشوقي هميشه ناز په عاشق کاندي

رحمٰن هيڅ له خپل ياره آزار نه دے

ستا د عشق حرفونه تور نه دي ګهکوزدي … هم په دا چه نوشته په جگر خون دی

تش به نه شي هغه خم د عشق له ميو … چه ئے خار ړه د فرهاد و د مجنون دی

د دنيا چارے همه دا ره فاني دي … دا د ستا جور و جفا و لے افزون دی

مقتولان ستا د غمزو دي لاله نه دی … چه په سر کفن له زمکي را بيرون دی

چه ئے هيڅ بهار لسيو څخه نشته … جو نه نه دي سکه ګنج د قارون دی

بادشاهان په يوه دم کښ گدايان که … ما ليدلي فنا دو نه د گردون دی

د رحمٰن د زړه خوناب مکر قبول شو
چه نمونه د دلبرو پر ګلګون دی

د عاشق نظر په خورد و په خوب نه شه      مراد یې به دیدار له د ربل باب نه دے
ته نظر په خپل هنر په عقل مه کړه      د اسباب په عاشقۍ کښ اسباب نه مه
چه د یار سره حساب د دنیا کا نه کی      د غه هیڅ په عاشقانو حساب نه دے
چه عاشق په عاشقۍ کښ رباب نه شی      که د درست جهان ارباب وی ارباب نه دے
هرچه یار د منع کوی له خپل میاره      د کتاب د عاشقانو کتاب نه دے
د حجاب چه نور عالم ئې حجاب بولی      د زما د یار تر میانه حجاب نه دے
د ثواب دے هم سوی د یار له مخ      ما ګڼلے د غه کار په ثواب نه دے
که لیدلے زلیخا یوسف په خوب وه      ما په ویښه دی لیدلے په خواب نه دے
صبر ونیسه په ملګنے که مراد غواړے      هیڅ کړے د غه کار په شتاب نه دے
رحمٰن سوال د بوسی کړے ده له یاره
لا یې هیڅ خفه مرنده جواب نه دے

همیشه دې زما سر و ستا قدم دی      تر هغه ساعته پورے څو مې دم دی
ستا له لاس وا ره مالره نافع دی      که مې زخم وی زهر که مې مرهم دی
زه بے تا هسے ګمان کړم چه سفال دی      که نسکور مې په لبانو جام د جم دی
نور عالم که د دنیا په ښادۍ ښاد دی      زما زړه دے مدام ښاد د ستا په غم دی
که په زړه باندې مې سل غمونه راشی      د ستا غم دې تر همه و مقدم دی
ما دې ستا له غم خدایې بیغمه نه کا      تر هغه ساعت پورے څو مې دم دی
رحمٰن ستا په مخ مئین دے خدایه خبر دے
که په دا کښ به هیچرے زیات وکم وی

هرچه ستا په زنخدان کښ ئې منزل شی      لکه خس په تناره کښ به جل جل شی
څوک چه نوم د استاد څوند و په خوله واخلی      که ئې زهر وی په خوله کښ هم عسل شی
په هجران کښ زه بے برګ و بے نوا یم      لکه ګښت چه اوبه نه مومی شلل شی
په عاشق باندې داسے ګمان مه کړه      چه یار زړه ورشخه یوسی تش کوکل شی

په جهان ترآشنائي خوا ږه څه نشته ۔ ولې حيف دے چه جهان پکښ حنظل شي

زهٔ رحمٰن بې ياره هسے شول وشل يم
لکه کب چه بې محيط شول و شل شي

دواړه سترګے مې کړے داستا په لور دی ۔ مدام ډوبے د فراق په آب شور دی

کښ ولي د دواړو سترګو ستا په طمع ۔ دهر لور ته مې نيولي کو د په کور دی

چه مې ستا خيال د ترګو وليده په زړهٔ کښ ۔ دواړه کړي مې د زړهٔ وته ننکور دی

ما قبول د رقيب ناز کړه ستا د پاره ۔ سود و زيان په د اجهان کښے خور و رور دی

په رحمٰن باندِ دا هسے ګمان مه کړه
چه بے تا په نور څه غلېږی هغه نور دی

د ساق په لاس کښ جام د ميو ناب دی ۔ مطرب اېني په زانو باندِ رباب دي

ته چه ماوته توبه وائې ناصحه ۔ په دا وقت کښ چا خلاصه د توبے باب دي

زهٔ چه ځان منع کوم د عشق له کاره ۔ په دا هسے کار کښ کوم سود و ثواب دي

دا آسمان چه لوځ په عقل کښ بالا شي ۔ په محيط د عاشقئ کښ يو حباب دي

هرچه ژغوری سر و مال په عاشقئ کښ ۔ هغه کړے کور په مخکښے د سيلاب دي

ته چه خوب غواړے په عشق کښ دا ته وايه ۔ کوم چا کړے د زمري په خوله کښ خواب دي

بے عمل که کتاب ګيږ دی په سر څه شو ۔ ګويا اېښي ئې تر پښو لاندِ کتاب دي

چه د شر له عملو نه خير غواړے ۔ تشنه لب غوندِ سرخوری په سراب دي

د دشمن له مکاری وو ويريږه ۔ په زمكئ ئې غلط مشه سنګ در آب دي

عبادت په شتاب هسے کړه رحمانه
لکه عمر چه د تلوني په شتاب دی

غواصان که ګوهر غواړي ګوهر دا دی ۔ بيدلان که دلبر غواړي دلبر دا دي

زما يار غوندِ به بل يو د لبر نه وی ۔ د جمله وُ دلبرانو سرور دا دي

خوږ د دلبرا د چاهٔ زنخدان دی ۔ راشه ګوره زمزم دا دی کوثر دا دي

چه دِ وصل او هجران وته نظر کړم ۔ زهٔ ګمان کړم جنت دا دی سقر دا دي

ته خطبه په منبر څه لولې خطيبه ۔ قدم کيږده په ځان باندِ منبر دا دي

دومره سفر آسان دے مرد هغه دے — چه له ځان سفر کاندي سفر دا دی
هر منعم چه دعوی د قلندر کا — هغه نه دی قلندر قلندر دا دی
چه توانګر د قناعت په خزانه شي — بل توانګر په جهان نشته توانګر دا دی

دا هنر نه دے چه خاوره څوک سره زر کا
چه زر خاورے کا رحمانه هنر دا دي

دنیادار که مستغني په سیم و زر دي — هنرمند و ته غنج د خپل هنر دي
بیهوده به زور آور و ځان ته وایئ — د دنیا سرے که هر څو زور آور دي
هسے مه وایه چه زه یم په جهان کښ — پیدا کړے خدائے د هر د پاسه سر دي
ځنے ځنے بے و بیان پیغمبران کړل — نه چه هر سړے ولی او پیغمبر دي
جو دانه قدر یو لعل پکښ پیدا شي — نور جهان واړه د تورو کڼړو غر دي
یو بادشاه دی چه لښکر ورپسے درومي — نه په هر یوه سړي پسے لښکر دي
پیدا کړي خدائے سړي په تفاوت دي — نه هسے چه جهان واړه برابر دي
که د عمر و رفتن ته څوک نظر کړه — دا به وایئ چه آفتاب د نماز دیګر دي
چه يې سر په زمکه ایښي وي دیار ته — په آسمان باندې ختلی لکه نمر دي
تعجب زما د پیرو او د نیکو مه کړه — ما موندلے په دا بحر کښ ګوهر دي

د ریا خرقه يې خدائے مه کړه پیغاره
رحمان ګوره دستار تړلے قلندر دے

که دلدار په دلداری زما قدم بږدی — ګویا هر قدم په لاره د حرم بږدی
ځانے لري که بے منت بوسه راکړي — کوم کریم په چا منت د خپل کرم بږدی
معشوقه مشفقه بویه مهربانه — نه قارون چه په ځان اسم د خاتم بږدی
هسے پټ لرم دا زیر رخسار له خلقو — لکه زر چه څوک له خلقو پټ په خم بږدی
خدائے د ما و ته څو نه د جنت کړل — که د غونډیم په زړه باندې د غم بږدی
هیڅ ماله يې څوک نه مستو سترګو نه کا — کوم یو مست دے چه قدم په لارے سم بږدی
راحت نه دے بې زحمته چا موندلے — کوم طبیب دی چه په روغ صورت مرهم بږدی
زه هر ګوره تر خپل صنم پورے شرمیږم — برهمن چه سر په پښو د خپل صنم بږدی

وآسمان ته لاس دَ عقل نهٔ رسیږی — داخو عشق دی چه په عرش کرسی قدم ږدی

زهٔ رحمان یې تاج کړم د یار له لاسه!

کهٔ پښو په سر د جور دَ ستم بږدی

دَ دُنیا کاروبار کلواړه غلول دی — دا دُکان په هیچا مکروه چه یې خپل دی

هیڅ مزه په دا جهان کښ پاتے نهٔ شوه — دیغ سوړ کیده او بو پوړے کول دی

یو زهٔ غوږ دغو بنوشته په هر چا پورے — که د شرم یو زهٔ غوږ غواړی باطل دی

که دِ دره کاسے دانی دی په کښند وکښ — پس له شام هسے دا یه چه دبل دی

که ته یو یا دوه عیبونه دَ چا شمار کړے — بل به هسے تا ته وائی چه ستا سل دی

نصیحت دَ ناصحانو اثر نهٔ کا — دسپے او سپنے خوشے پټ کول دی

دا نا اهل همدمان دی نهٔ پرهیږم

که موچئی د رحمان بندے په کوګل دی

هر نګار چه بیوفا دی نګار نهٔ دي — په ګلزار کښ چه ګل نهٔ دی ګلزار نهٔ دي

په تلنڅئ د میوست خلق یې خوښ دي — هغه خار چه بوی د ګل لری خار نهٔ دي

دینداری دنیاداری دی څه پله لرے — مالیده لی هیڅ دینداره دنیادار نهٔ دي

که روزګار دِ په جهان کښ بادشاهی ده — ددی نور عالم روزګار څه روزګار نهٔ دی

چه تصدیق ئے په خپل زړه کښ محکم نه وی — دا په خوله ظاهر اقرار څه اقرار نهٔ دی

په هر زړهٔ کښ دخپل یار دَ غم غبار دی — دغه ابر د رحمت دے غبار نهٔ دی

چا به کسب بے له عشق نور څه نهٔ کړه — بازی ګنج دی چه هر یو ته اظهار نهٔ دی

معشوقه وفا له هیچا سره نهٔ کا — ګنړه کوم یو ددی رخت خریدار نهٔ دی

دخپل یار وصال دُ خدائے په دا د مونډه شی — دغه کار دِ هیچا په اختیار نهٔ دی

په رحمان باندِ منت دَ معشوقو دے

د بے حسنو معشوقو منت بار نهٔ دی

هغه زړهٔ چه هدا ے رونبان کا جام دَ جم شی — په دا جام کښ ورښکاره تمام عالم شی

په آدم کښ دَ حیوان خوینونه هم شته — بیا هاله ئي آدم بوله چه آدم شی

چه خوینونه دَ چارپایو یکښے نهٔ وی — سری خو ښه په سری هله مُسلّم شی

چه آغوستې يې لباس دې د پاکانو
دنيا پاکو چاره کاندې خوبه کرم شي

که هر څو طعام لذيذ دې مزه نه کړد
چه يوه ذره نمک يې زيات وکم شي

ښادي هر چېرته د غم په اندازه دي
دغو به څه ښادي وي چه ئې غم شي

هر چه خپله رضا پاسلوي قضا ته
که هر څو په ځان ناخوښ وي خوشخرم شي

عاشق چه ترکمان د درد سېېږي
دخپل يار له لاس زخم يې مرهم شي

که په ځان باندې قدم کېږدي رحمٰن
نه فلک به ورلاندې تر قدم شي!

د عاشق بې خپل ياره قرار نه شي
بې طبيب قراري د بيمار نه شي

چه په لوح محفوظ کښې ليکلي ليونې دي
په تعليم د معلم به هوښيار نه شي

زوړ د پلار په غېږ کښې پروت دې روح زار شي
د قضا علاج په مرور په سپلار نه شي

دغو چه خدائې کمال حُسن ور ذي کړو
هيڅ نقصان يې د منکر په انکار نه شي

درد و غم د عاشقۍ چه وير مشکل دي
هيڅ سره دې په دا درغم گرفتار نه شي

زه همه عمر له خدائے د دې خواست کړم
چه دې يار له خپله ياره ويزار نه شي

که هر څو يې دلبري د محبوبۍ کا
د رحمٰن په ترکو هيڅ اعتبار نه شي

داچه مست په ميوراغي ياره چادي
بيا به تاخت کا په کوم غولي وار د چادي

چه زړه سوکۍ د حرم په صيد هم نه شي
دا بې درده بې صرفۍ گذار د چا دي

ما خونه دې څوک بې ځيبې آزار کړي
داچه ما آزاره وي آزار د چا دي

چه ئې درست جهان د مخ په ننداره زين کا
دا آفتاب غوندې روښان رخسار د چادي

چه بلبل يې رسيدې ترکمو نه شي
دا د ننه په حرم گلزار د چا دي

چه هيڅ ترس پد زړه کښې نه لري رحمانه
دا نا ترس و بې پرواه نگار د چا دي

يوه ذره بد ورزي بيا به مور يې
په يوه ذره به کرم يا به سوړ يې

نه مړ نې د خدائ په غوا ره ځوان به وري
اوکه پس له ځواني پايې خوبه زوړ يې

سره که خوبه جوړ که ناجوړه دي
خدائے خونه لي چه به تل ته جوړ يې

عاشقی به دِ آسمان غونډې شر کند کا
که مجنون غونډې هر شو په صورت ودرېږي

عاشق بي جذبې چېرې ده رحمانه
تر مجذوب دَ یار په مهر کښې مرد رېږي

درک شه درک شه بد کردار او بد سړی
که دې د درک دِ عزیز وی که پردی

تر هغه لا نیکو کار بیگانه ښه دې
چې بدکار شي د چا زوی یا نمسی

لوګي لوبني هسې دا ره پرې مردار وی
بد کردار دی سور لنډی یا وږی سپی

هغه خلق به هسې وا ره لیوني کا
چې په کلي کښې یو سپې شي لیوني

بل علاج د لیونیو سپیو نشته
بې له مرګه چه تر ډک کاندی کوهي

حرام خور دَ مخنشو په حساب وی
که په توره یا په تیغ وی مړنی

مړنی وګټلي بویه د هغه ته!
چه بې وجهي آزار نه کا هیڅ سړی

دیګ یې اینې په دیګدان د رمبي تر تیغ وی
چه یې سور په آه سرد نښي نغری

هسې فیض یې د هر چا و ته رسیږي
چه بالاښي دَ ښېل وخت خاتم طائي

اے رحمانه چه بد فهم د بد کر کار شي
را ته دا یه ښه بهتر ده که سړی

چه وصال دَ ښېل جانان مې دې موندلې
ګنج دو ر د مرجان مې دې موندلې

همره طمع مې دَ ښېله بخته نه ده
نه پو هیږم چه څه شان مې دې موندلې

که په ډېر مشقت لاس لره خدای راوست
زه خوا یم چه آسان مې دې موندلې

چه مې یو نفس وصال ورسره وشه
دا ره اجر دَ هجران مې ده موندلې

څه عجب دی که تمام جهان زما شي
چه بادشاه دَ درست جهان مې ده موندلې

زه رحمان په ښېل شعر شکر ګذار یم
چه دا هسې رنګ دیوان مې دې موندلې

چا چه ګرې د دُنیا و ته اسرې دی
د مغو په سر همه خاورې ایرې دی

نادانان که دَ دنیا په کار نازیږی
و دانا و ته دا د ښتې مسخرې دی

چه بې خدایه محبت که هغه خلق
نارینه یې وا ره خرا و ښځې خرې دی

وسپین بږیری و ته مه وایه سپین بږیری
همګي وا ره ضغنان د مکوارې دی

چه نه فیض نه څه بهره ځنې مونده شي همګي واړه بې فیض بې بهرې دي

ذخیره د دُنیا مه کوه رحمانه
دا همه واړه د خاورو ذخیرې دي

آشنائي توره بلا ده آشنا مه شه جدائي به دې فنا کا فنا مه شه
درد و غم به دې د زړه ولې کړه غوټه ګرفتار په درد و غم د جانان مه شه
په زېړ رنګ به دې تل سرې اوښکې بهیږي د دو رنګو په خېر ګل د رعنا مه شه
هم په دا چه د دروغژن د خدای دښمن دي وهیچا ته دروغژن په و بینا مه شه
که اعلیٰ مرتبه غواړې عاشق ده نور همه واړه ادنیٰ دي ادنیٰ مه شه

همیشه به سرګردن په فکر ناست یې
د رحمان هسې مشغول په ثنا مه شه

چه په نور څه پوهه زړه تړې به خدایه څه پوهیږې چه په ځائې کړې که بېځایه
دانسته چه په بل تل تر تله پایې که بیا پائې خو تر سلو کالو پائې
که د سل کاله شي عمر خو به تېر شي دغه پس راڅه کړې راته وایه
سم له لاس چاره نه شي مرد هغه دې چه بید اروي و غلیم وته له ورائې
تړپید اصل کښې سره تې خاوره نه ئې د چار پایو چارې مه کوه دو پایه
مرتبه به دې د هیچ اوده میږي شي زړه په غرور د غوښو مه تړه همایه
مور به نه شي په حرص بې قناعت اې په تخت د اورنګزیب ناست ګدایه

ورانډې سرائې له توښه تړه رحمانه
څو سفر دې کړې نږدې له دې سرایه

له دې کښې له پوزې خوب به د لار شي تر و بیا خدایې خبر کوم خوا ته به لار شي
په ظاهر صورت څه ښه معلومیږي چه به خس غوندې تر پښو لاندې تار شي
دا آسمان زمکه به وي او ته به نه یې په ودانه ودانۍ کښې به ویجاړ شي
د بهار د ګلو عمر مدام نه وي عندلیب غوندې به پاتې په اهار شي
په ویلار ویلار به ځان درپسې ورک کړه چرې نه وي چه د ترکو په ویلار شي
که لیلیٰ غواړې بایده دي دا رحمانه چه مجنون غوندې ساکن د کوه وکار شي

ته په هره کړۍ غم د سیم و زر خورے — زهٔ د هره کړۍ دیم چه خپل سر خورے

عاقبت به دیو خند له ښینے دو زی — ته چه تل په هر یو ښاخ باندِ ثمر خورے

په عوض ئے کوم طاعت کړے راته وایه — دا نعمت چه په هر شام و هر سحر خورے

روژتی په خورم په هر انتظار کا — ته خلور ځله طعام پهر په هر خورے

که یو ځل ترکـاله ورسـیږی — نو ربه غوښے د خپل ځان لکه ثمر خورے

که ښینبه د نام و ننګ دِشی تر ځنګ — دهر چا په کجروی په خپل جګر خورے

بے هنر وله تند هم زهر قاتل دی — تند ئے د ګنړه که زهر په هنر خورے

نهال په زړهٔ د صبر کړه نخل رحمانه

چه مدام د برخوردار په خیر برخورے

ته چه خپله بے عقل هوښیاری بولے — کاشکے بیا مړی د غوښتو په نرخ شولے

عشق یو دادے په عاشق باندِ له خدایه — هسے نه دی چه ئے پیسے پائے پرولے

زلیخا غونډِ به بله شیدا نه وی — که د مصر مستوری شی واړه تپولے

هغه بحر غم به بحر حساب نه دے — چه اوبه ئے خاک الودی وی ختولے

له هغو سره به څه فکر دیـار وی — چه په غم وی د کاله یا دکهولے

عاشقی د نغری پد غاړه نه شی — څو به یار پسے وانه خلی ځلی زړلے

د وصال په نعمتو نو غره مـد شـ. — جدائی خلقے کړے په زړه خمولے

دُر ګوهر په تله نه دی چا تللی

د رحمان شعر ګوهر دی شمیئے تولے

په نامه د هغه خدائے م دا بیان دے — چه یو نوم ئے په نومونو کښ سبحان دے

هم باد شاه دے د جمله و بادشاهـانو — هم دیوهر سلطان په سر سلطان دے

هغه کار چه و هر چا وته مشکل دے — هغه کاروا په وده وته آسان دے

څوک آفتاب شی په آسمان راخیژولے — ده آفتاب راخیژولے په اسمان دے

څوک په شپه کښ شی مهتاب پیدا کولے — ده په شپه کښ پیدا کړے ماه تابان دے

څوک د نمر په مخ حجاب شی غوړولے — ده پټ کړے نمر په ابر کښ پنهان دے

څوک یو څاڅکے پریشی شی له آسمانه — نزول کړے ده په مونږ باندِ باران دے

کہ بوخس وي په محتاجو که غنو شي — خدائے دِ نه کا څوک محتاجه د یوخس
هر مرغه بچپله جاله کښ همایه دے — که قارغه که منکیرک دے که ققنس
که شهباز لره سینه ده د تنوزي — عنکبوت لره سینه ده د مګس
خوچه خاورو لړ درشي برابر شي — که چا غونډه دي اغوستے چا اطلس

هم هغه مې خندہ وي چه ژړه وي مې
بل څوک نشته د رحمن فریاد رسے

که په عقل چے لا هم پکار نه ش — که له بختہ مې یاري غوښته یار نه ش
غونه غوونه خوب په څاڅکي او بو دروي — یار په سیند زماد اوښکو بیدار نه ش
معلومیږي چه کم بخت دو درست جهان یم — چه دو درست جهان دلدار مې دلدار نه ش
ما غونډي او رقیب ستاني طالع مکوره — چه سرے ورته دیپي په مقدار نه ش
که سل ځل اقرار راسره وکړه — په دنیا کښ مې بل څوک غم خوار نه ش
بل مې سل نصیحتونه ورته وکړه — هغه خدائے به لاړے کړے په لار نه ش

سهل کار دے که رحمن په زړه آزار شم
چه خطر د هغې ستے آزار نه ش

چه له ستر کو مې خوناب د زړه نیان ش — له نظرو مې هر سنګ دروِ مرجان ش
خراب زړه چه مې ژړل دیار له غمه — بیا په اجر دهغي ژړا خندان ش
کښیني له جسمه آفتو خلاص کړم — لکه خاورے دد ښمنو په چشمان ش
د غصے زهرږي شهد شول په صبر — د خلیل په څیر آتش پرګلستان ش
عشق یو داد ے په عاشق باندِ له خدائ — هسے نه چه دهر چا وته عیان ش
چه دیار زلف رخسار مې په زړه نقش شو — خیال خلوة مې خراسان وهندوستان ش
درحمن علاج ترخه ترخه دارو دی — د غه دردے چه هم درد وهم درمان ش
چه دا ستا د خولو بوئ ورباندِ راغے — د عطار په مخ داوښکو درد روان ش
علامت د استغنا بنے خرکند وي — هغه څوک چه تیر تر ځان وتر جهان ش
د ګریبان په چاکول یې خه لارغه وي — چه څیکرنه پوهیږي چاک تر ګریبان ش
نادانان به د دنیا غونه کاسدي — مرد هغه دي چه په زیرمه د خپل ځان ش

نشانه د نادانئ په نوره خشنه وي — چه سړے په خپل کودار باندې پښېمان شي

آدمیت خو په دوست نه دے رحمانه

بُت که جوړ شي د سرو زرو انسان نه دے

په دنیا کښې له دنیا گوښه کنار شه — سمندر غوندې په اور کښې گلعذار شي

پس له مرگه که ژوند غواړے سر کیاه کړه — په پرېکړي سر بیانوي مرغزار شي

داتریخي او به به خوږ کوے د بحر — خود بخپله د گوهر په څير ابدار شي

بے له خدایه نور د هیچا منت مه کړه — رنج به کا نړی باندې ونه د کهسار شي

که دو ني په څېر گل و میوه غواړے — ځان په نمر کړه سایبان د هر خاکسار شي

دست په دست که د خپل کار په درشتول ئي — لا پخوا تر ځان رومبي د بل په کار شي

که دیره شي له خپله درماندگي — د درماندو دستگیري کړه خبردار شي

که هوا د جنت په خاطر گرزي — خاک نشین په آستانه د هغه یار شي

که به تور د تارې کښې د نړا غواړے — ستدارچي د یار د زلفو د رخسار شي

که پکار د د سرو شونډو وشیریني وي — د خپل ځان په دینو سور لکه انار شي

که راضي ئے چه د باغ شي د زړه سبز — په ژړا لکه باران د نوبهار شي

د رحمان په عاشقئ کښې ستړے وشوے

چه څوک وائي عاشق ړوند د غمه خوار شي

پاسه بو څل سیراب د عشق په جام شي — په ساغر د ماه د دهر مستي اشام شي

له اول بندگي بیا ازادي ربي — که مقصود د آزادئ لرے غلام شي

د صیاد له رخشتو نو خبر خلاص کړه — لکه مرغ خاکي بخپله دام شي

ژوندے ځان بخپله خښ کړه لکه تخم — که نوي غواړے د خاورو په مقام شي

د رست جهان د کمینئ په خوئ وخوړه — لکه زمکه هسے لاندې تر قدام شي

په نیستئ کښې د هستئ مرتبه گوره — ستدارچي په ویړانه د خپل بام شي

د دښمن و ته خپل حال بخپله وایه — ځان پخوا تر مرگه وژنه مدام شي

په مستانو کښې د عقل خبرې غل دے — که په نورو خلقو خاص ئے دلته عام شي

اے رحمانه د بلبلو ژبه زده کړه — د غنچه پس په صفت د گل اندام شي

د دنیا د سود د پاره غمگین مه شه — غم د دین و د ایمان خوره بې دین مه شه

هر ګړه ګړه ننداره لري که بخته — نا امید له خدایه غوټه جبین مه شه

دېر خفت دي دا رنده چه د انا چین شي — خو د اب و دانه شته د انه چین مه شه

هر مرغه چه د بل غوښې خوري مرداروي — ځان حلال کړه که ته زانره شاهین مه شه

د درزي په څېر اختیار په طلب کړه — که تیږه هسې پروت په زمین مه شه

کار په تش لستونړي نه کېږي بې لاسه — لاس په زړه کړه بې لاس آستین مه شه

عاشقي او خود بیني دي سره لرې — که مطلب دې عاشقي وي خود بین مه شه

په خپله کور کښې د سفر دې که پوهېږې — مسافر د هندوستان و د چین مه شه

خپل تابوت د رته و لاړ زین کړه اس دې — ته په زیر د مد بل اس و د زین مه شه

چه تقوی دیانت نه لري رحمانه

د دوه هسې همنشینو نشین مه شه

په اُمید د آینده و ذره سه ورشه — نسید نقد خپله بیل کړه و ترمه شه

په امید امید ځ خلق نا امید کړه — د ننګه له رهزنې بې خبر مه شه

د دنیا پادشاهان خواست کړي له فقیره — ته پادشاه هسې ملک شه خواست ګر مه شه

د حرافي په غیر طمع کړه د وچ هډو کي — که د مچ طالب د شهد و شکر مه شه

ځان صدف غوندې و خاوړو ته کړه خاره — که خاک هسې د خاور په سر مه شه

دېر خونریز دي سرم د لاڼ د سنګه لانو — ته یو څو خکې شه دا دبکر تو هر مه شه

دیوانان هم په تسبیح د رب مشغول دي — ته انسان ځ له حیوانه بتر مه شه

نفس شیطان سره د کفر و ته باسي — رحم نه هم پخپل ځان د کړه کافر مه شه

پټ راغلي دي عاشقان د یار له غیبه — ته پټ روند د هغه یار په هنر مه شه

د غه ځای د بید لانو دې رحمانه

د د لبرو په کوڅه د لاور مه شه

هسې بې له یاره زه یم په جهان کښې — چه یم نه شي ځای په زمکه په آسمان کښې

سره ګلونه د چمن راته سور اور شي — چه قدم بې یاره کېږدم په بوستان کښې

چنځه مرنه یم نه پرې یې نیازي — حیرانیږم د نا توان صورت په توانکښې

که هر څو نکړله ځان سره فکرونه ‌ ‌ ‌ هیڅ د صبر طاقت نه وینم په ځان کښې

هیڅ ساتند د سرکښ خاطر را نه شي ‌ ‌ ‌ څوک ساتلی شي بخري په ګریبان کښې

تر هغه به بل نادان په جهان نه وي ‌ ‌ ‌ چه څوک مهر و وفا غواړي په نادان کښې

که مې سل ځله په زار و قربان بولې ‌ ‌ ‌ غوږ زما نه باسي په زار و قربان کښې

هسې رنګ زما په ویړه ژړا خاندي ‌ ‌ ‌ لکه ګل د سپرلي خاندي په باران کښې

جوهري شي د ر و لعل که ید برخیره ‌ ‌ ‌ چه مې ګینې د دوه سترګو په دکان کښې

چه مې هیڅ ریه په خوا په خاطر نه ورو! ‌ ‌ ‌ زماني را ته ښکاره کړه په زمان کښې

چه په رضا یې او ښکې نه وڅېږي

ترو به حال د رحمٰن شه وي په هجران کښې

زړه مې با ښیلو ستا په مینه محبت کښې ‌ ‌ ‌ عاشقۍ د زهر راکړه په شربت کښې

لا زما و یار ته مه ترږه ناصحه ‌ ‌ ‌ ما موندلې ده دا یاري په ډېر محنت کښې

که صورت د هغې مستي را ترګنده شي ‌ ‌ ‌ عقل هوش به د هیڅ نه وي په صورت کښې

که د عشق تر کمر پر یوزي سر به بایلي ‌ ‌ ‌ ته چه ما ته غاړه ږدې په نصیحت کښې

زه ترسه په عقده تیر عمر و که بی م ‌ ‌ ‌ چه صرف شوي دي بې یاره په غفلت کښې

د آشنا د مجلس پټ به مې مات نه شي ‌ ‌ ‌ که مې سر له تنه درومي په دا پټ کښې

له دې بې ږغ تر کښې نه شم ‌ ‌ ‌ خدایه را پېښه جدایي کړه په وصلت کښې

په قیامت که څوک له نیت پوښتیده شي ‌ ‌ ‌ زه د یار د کوڅې خاورې یم په نیت کښې

د درګاه په خاک نشینو سختي نه وي ‌ ‌ ‌ د غمونو د خلل نشته په جنت کښې

لکه زه چه ستا د در په خاورو خوښ یم ‌ ‌ ‌ خوښ به نه وي سلطانان په سلطنت کښې

د دنیا له دولتونو بې پرواه یم

زه رحمٰن د عاشقۍ په دولت کښې

مدام ناست یم د ګوګل سترګو په نم کښې ‌ ‌ ‌ عشق را ښود بحر و بر په غبل حرم کښې

ماچه زخم ستا د تورې ښکوله کښېل کړه ‌ ‌ ‌ نور به دا لذت بیا نه مومې په مرهم کښې

خود مجنون په سر په پښو د لیلی ګېښود ‌ ‌ ‌ [illegible]

زور اور مدام غالب وي په کمزوري ‌ ‌ ‌ [illegible]

که زه چه مستغرق یم ستا په غم کښې — بل به نه وي په جمله بني آدم کښې
که مې سره د ژوندون تر میانه پروت دی — هسې بیل یم له عالمه په [illegible]
هیڅ صحبت مې ددم کړو په دم نه شي — هم په دا چه زما دم دی ستا په دم کښې
نه مې بې تا تنګ د یو نه جست د جوشته — سر او مې تړې په هر دم په هر قدم کښې
که نصیب مې شي کو خالي ستا د سپېرو — و به نه کړم نو نظر په جام د جم کښې
زړه مې هسې ستا په زلفو پېښ دی — لکه غوټه د چا پرېوتې په تور شم کښې
سره په وینو د سر د کلو په ښیر زانګې — هزار زړونه د زلفو په هر خم کښې

زه رحمٰن ګناره خوښ یم له عالمه
یاري ستا ستر ګو رسوا کړم په عالم کښې

مغرور مه اوسه د عشق په کار د بار کښې — هر خنجر په تیره تیغ د سپه دار کښې
دا سو رګل به د دستار په وینو سور کړو — چه د اینې زماني دی په دستار کښې
مخ د ترکو چه تراب حیات صاف دی — زه د آب حیات شوی په [illegible] کښې
چه د او سپینو دانه پرې او به کېږي — ترو زما د هستۍ څه دی په دیار کښې
چه په هر دارې زه ستر ګو ته نظر کړم — راس مې ولې دی له د نه په هر دار کښې
یاره ته چه له ما صبر و قرار غواړې — عاشق کله وي په صبر و په قرار کښې
که مې سر و مال د استا په صینه دروي — زه تر سر و مال تیر یم په دا [illegible] کښې
ستا له دره له دیاره به وا نه وړم — څوک نه مرم ستا په دراو په دیار کښې
که بختان دیار په وصل کښې مجبور دی — دغه وګړ بهره نه وي په [illegible] کښې
منصا نو لوره عین کو هسان دي — که همه عمر يې کوز وي په بازار کښې
وغیب جوی ته واره غیب خرکند یږی — ښائسته که ځان یوسف که په سنګار کښې
چه هنر د عاشقۍ یې حدیه نصیب کړه — بې هنره نور څه نه وینې په یار کښې

دا د اخون د هنپل زړه ور لره بس دی
څه حاجت دی د رحمٰن په لاله زار کښې

هسې خوښ ستا د ربه خلک ادي کښې — لکه خوښ یم سرداران په سرداري کښې
عاشقي که نور خلق ته خواري ده — ما موندلې دا دولت دی په خواري کښې

د بیمار ته که ناخوښ راځي و ګکرې — خوښ یم زه د استاد عشق په بیمارۍ کښې
د چنډ بام و دروازه وته نظر کړه — هسې سترګې د زما په بیدارۍ کښې
یار دیدار له سترګو اوښکې پاکیزه کړه — تا جاري کړې زما اوښکې دې په یارۍ کښې
ماله د یرې ناچارۍ دیار ته شا کړه — سره عذر دې په د ویره ناچارۍ کښې
غم به هیڅ بوده هوښیار خوښ کړے نه وه — ما خوښ کړے دے ستا غم په هوښیارۍ کښې

د رحمن اوښکې به څرنګ په قرار وي
چالیدلې دي دریاب په قرارۍ کښې

زړه یم ډوب د ډوب کېږي ستا د غم په غلو کښې — هسې لکه څوک چې مستغرق شي په اوبو کښې
ستا د عشق له موج په هیڅ لوري وتې نه شم — دواړه لاس یم پریواته د عشق په لامبو کښې
سل توبې یم ماتې کړې را ونیتم له عشقه — سادیساه م نوره پاتې نه شوه په تربو کښې
نه چې له ما دردمې دادا د اوښکو باران کوره — روح د سفر هیڅ نه دی په دا اکنزو شیبو کښې
نه بوه سپوږمۍ نه په اسمان کښې هزار ستوري — بې تا به څوک څه کاندې د خلقو په جنبو کښې
عشق د عقل دواړه سره ضد دي که پوهېږې — کله کړي آرام دا ورنجري په پښو کښې

هر څوک چې د عشق په آتش ځان سېزي رحمانه
خدائې د ابراهیم غوندې څوک نه کا په لمبو کښې

د بلبل له حال زده کړه په خزان کښې — بیا د ګلو تماشا کړه په بوستان کښې
خو د تیره تلخانی ترستونی نه شی — شیریني به خوند در نه کا په دهان کښې
ما په هجر کښې لذت د وصال بیا موند — له یوسف ملاقي شوم په زندان کښې
که متن له معنی معنی له متنه — یار هم هسې مې زما په دل د جان کښې
عاشقي آسانه مه ګڼه خبر شه — سربازي ده هر نفس په دا میدان کښې
ناتوان له ناتوانۍ وربېرېږه — هر چې بل آزار وي په دا جهان کښې

په رحمان باندې یارد هسې حال دے
لکه حال د زندانیانو په زندان کښې

تا د مینې کوه نشته په هر آب کښې — مګر بیا موند شي د اوښکو په دریاب کښې
ته وینې زما څنګ څښې د لسره — رنګ د لبو دي ګواهي لي په احباب کښې

خدایه څه شه هغه ښکلي ښکلي خلق — په ظاهر په باطن سپین سپېڅلي خلق
هیڅ خندا یې له دې خلقو سره نه شي — ژړوي یې هغه تللي تللي خلق
خبر نه یم چه د کوم خوا ته لاړ شه — لیدې نه شي هغه ما لیدلي خلق
که ځمکه چه د اوبو په څنګ کښې دروي — هسې دروي په دنیا راغلي خلق
دریغه یو ځل خو بیا په دنیا راغلي — له جهان په ارمان وتلي خلق
هزار حیف دې چه په خاورو کښې لاړ شي — په چړو او چنډو نه لرلي خلق

رحمن هسې ګوښه خوند له خلقو بیا خوند
چه هرګز نه دي دا خوند موندلي خلق

که سړې د ځېلې پوهې تقصیر نه کړ — د خدای کړه به څوک په پوهه تغیر نه کړ
خواه مخواه به د تقدیر شوی درپېښ شي — که څوک هیچرې نظر په تقدیر نه کړ
هغه چه بخت بیدار وي غم یې نشته — که هیچرې بیداري و شبګیر نه کړ
د الله ځېلي کم پوهې مرېزه څه وایو — چه تلاش سړې تالاش وته بېر نه کړ
دستګیري او خوشحالي که په ځپل لاس وي — په ځپل لاس به ځپل هیڅوک ځان ګیر نه کړ
معرفت د خدای نه څرګند دې په هر څه کښې — سترګې وغوړه چه څوک هغه نظاره نه کړ
دا نفس په مثال برق صورت فانوس دي — برق به هیڅوک په فانوس کښې اسیر نه کړ
د دنیا سري همه واړه درمانده دي — کوم باد شاه دي چه منت د وزیر نه کړ
وړاندې کوم کوژدن دې په جهان کښې — چه فلک یې آخر وته وېر نه کړ
به خوله هر یو سړې اسم د پیر اخلي — باري څه به کار چه تغر ته د پیر نه کړ
د غه لمبې د قیامت نږدې نور څه دي — چه د پلاو سېل به زړې تاثیر نه کړ
هسې چاره له ناصحه واقع کېږي — چه له شرمه یې هیڅ غل و کاسیر نه کړ
مرده پسې تکبیر و کاروان شي — څوک ګمان په ځان د هسې تکبیر نه کړ
د دنیا پسې درست عمر زهیر یږي — ځان یو دم د خدای د پاره زهیر نه کړ
عیال د پاره تیر تر سرو مال شي — دلجوئي په یوه تپوک د فقیر نه کړ

رحمن کرم دي چه ناري د هجران وري
و آشنا وته کاته په څیر څیر نه کړ

په امید پر عمارت دده جهان کړ
لکه کړ بنه په اوبو هسې نشان کړ

د اوبو په مخ د کړ بنی بقا نشته
په نابود بانید ناحق د بو د کمان کړ

نادانو هسې دین په دنیا بایلود
لکه وړوکی دُر بدل په پاره نان کړ

د دنیا و دین نسبت و بله نه شي
ادرا و بېز سره استوګنه په څه شان کړ

عشق د نفس له خاصیت منزه دي
کارد ستر ګی به څوک څنګه په دهان کړ

لکه کار د ګوش وچشم سره بیل دي
هسې دین و دنیا حکم په ځان ځان کړ

به پیرئ کښ د ځوانئ خیال دے هسې
لکه څوک چه د باغ سیر په خزان نه کړ

بے درکاه دي بل ځائے د رحمن نشته
په سفر استوګنه څو مسافران کړ

چه امید په عمارت دده دنیا کړ
د کاغذ په کشتئ سیر د دریا کړ

د آسمان توسن هیڅ نه دی ستیزلے
څوک به څرنګ سورلی د باد پشان کړ

نه لیوه په آدمیت آموخته کیږی
نه امید د مروت څې له افلاک کړ

له ننګ د وفا امید باطل دي
که دیو له آدم زاد سره ودن کړ

زمانه په اسلام کفر سمه کړزی
فرق د تورو د سپین همه بنیاد کړ

ماند هر علامت په ستر ګو ولید
په هر دم هزار پیدا هزار فنا کړ

هیڅ امید مې د ایام په ګردش نه شي
چه فرصت به په خپل دور ما را کړ

په خپل عمر به هیڅ الید لی نه وي
هغه چارے چه د هر ساعت په ما کړ

که د ګلو غنچه کیږ دم په دستار کښ
شوم طالع مې هغه خار غني پیدا کړ

که د زر و ته غلام کړم خاورے کیږی
که د خاور و په آرزو شم استغنا کړ

جدائي د خدائے بلا شوه نه توانیږم
خوشے زړه مې په دیدن پسے ژړا کړ

همره صبر دی عاشق څخه له کوم
چه د نن وعده موقوفه په فردا کړ

که دا ورجامه را واغوندی دلبره
په نظر زما جلوه لکه دیبا کړ

په خپل عشق کښ که څوک بد را باندے وائي
زه ګمان کړم چه همه زما ثنا کړ

ملامت په عاشق بناق دا دستور دی
چه روغ خلق په رنځور پورے خندا کړ

[illegible]
بیروښانه ورځ به څوک څرنګه غذا کړ

کہ زۂ طمع کرم د کلوله طالع نه — ما عاجز له د گل ځائے خار راکړ
کہ زۂ ځان ژغورم پہ عشق کښ له غالم — زمانہ م پہ جهان بانډ رسوا کړ
همیشہ بہ پہ عالم کښ وی سرخ روئے — چہ شا لکہ بلبل د خپل آشنا کړ

دا خواب رحمٰن هغه کا چہ دولت وی
کہ دلبر دردیدن وئ پیاپی راکړ

اورنگ زیب چہ آرائش د تخت وتاراج کړ — تخت وتاج بہ یئ مرگ تاخت وتاراج کړ
پہ جهان کښ بہ یئ پاتی بہ بد نوم شي — کہ دی چارے د کمزوری اود تاراج کړ
او بہ ستړی لړ لارے اورد زړۂ شے — ځوک بہ غښتکه ژوندون پہ دا مزاج کړ
حد یئ زما پہ زړۂ کا هسي چارے — لکہ بانچہ پہ تار او رپہ دراج کړ
زما وینے چہ پیدا د زړۂ پہ زیم شوی — لکہ اور چہ له کباب نم اخراج کړ
زۂ غمجن د عید پہ جشن خبر نہ شوم — کہ نور خلق هاي وهوي تہ احتیاج کړ

هر ناوک چہ د قضا له شست خیزی
زمانہ د رحمٰن زړۂ ورتہ آماج کړ

ما توی م خولہ پہ شوک — خراشی م زړۂ پہ نوک
کہ ناری وهم کہ ژاړم — پرواہ نہ لری یو څوک
راشئ گوری منصفانو — د دلبرو دا سلوک
لکہ گل پہ لاس د طفل — زما زړۂ کہ شوک پہ شوک
د چشمانو پہ غمزه د ئ — ژوبل ژوبل یم ټوک ټوک
د فلک پہ توسن سور شي — دستار کیږدی پہ سرهوک
هیڅ اشر ورباندی نہ کا — د دردمند و درد دوا کړ

ای رحمٰن چہ عاشق شي
ځان دِ ناری کوک پہ کوک

عاشقان د ناصحانو وینا نہ کړ — مست هاغی د ما وتانو پروانہ کړ
داره جور ددی دهرم قبول دی — کہ خدائے ماله خپل یار جدا نہ کړ
چہ د کل پریشانئ شوه ورخرګنده — غنچی سر پہ زانو کښینو خندا نہ کړ

وسیلاب ته د ړنړوکی څه حاجت دی ‏ — ‏ زړه چه ژاړی سترګی څرنګ ژړا نه ک

دنیا کل په احمقانو ده ودانه ‏ — ‏ دانا ځکه وابستګی د دنیا نه ک

چه ئے زړه وی په هوا پورے ترلے ‏ — ‏ د حباب عمارت ځکه بقا نه ک

بی هنر دی چه څوک دین په دنیا پیرزی ‏ — ‏ هنرمند سړے دا هسے سودا نه ک

که څوک وائی هوښیار کم رایه دادی ‏ — ‏ چه بے خدایه نوره مینه په چا نه ک

ګدائی که ورپیښیږی ځکه بے دادی ‏ — ‏ هر بادشاه چه دلجوی د ګدا نه ک

چه بیدل یے په یوه نګاه د رغیږی ‏ — ‏ خدا انصاف دے چه دلبر ئے دوا نه ک

هر چه زړه ئے وی په یار پاندے بایللو دی ‏ — ‏ نوره مینه په چا بی له آشنا نه ک

چه ترغوږ وی ئے وینا د آشنا شوے ‏ — ‏ هغه غوږ هرګز پسے نورو وینا نه ک

وبه نه رسی د یار تر بلند بام ‏ — ‏ چه د ذرے غوندی روښ په ژړا نه ک

زه رحمن د هغه یار په ژړا خوښ یم
که اغیار ئے خدائے له میانه پیدا نه ک

هرچه ستا کوڅه ماوا ک ‏ — ‏ ځمکے بر شی تر افلاک

ځان هاله ورته بادشاه شی ‏ — ‏ چه ئی ستا د در ګدا ک

چه د ستا د در ګدا شی ‏ — ‏ بادشاهی ورته نور شا ک

نظر بی دا ستاله روئ ‏ — ‏ نه په ارض نه په سما ک

مینه بی دا ستاله مخه ‏ — ‏ نه په دین نه په دنیا ک

ستا په مهرو محبت کښ ‏ — ‏ ځان جهان واره تنا ک

د دنیا کور و دکړی ‏ — ‏ ستا په مینه کښ تالا ک

رضا ستا په رضا کیږی ‏ — ‏ ترکه خپله مدعا ک

وهر خوا ته چه ستا مخ شی ‏ — ‏ دی هم مخ په هغه خوا ک

چه له چا سره جفا کړی ‏ — ‏ له هغه سره جفا ک

که له چا سره وفا کړی ‏ — ‏ له هغه سره وفا ک

که په عمر چرے خاندے ‏ — ‏ خوله تا سره خندا ک

که په عمر چرے ژاړے ‏ — ‏ خو په تا پسی ژړا ک

که مطلب یې د دیدار دی ستا په ذکر مشغولاک
در ښتیښو مقام داد ے که څوک مینه په رښتیاک
عاشقان په عاشقئ کښې
چه رحمن وائي هم داک

کیده و ترپه پري سره ککک دروتئ طمع ومه کره له فلکک
هرسائل چه سوال د نان کري له ملکک گویا غواړي په کچکول کښې اوبه مک
له آسمانه چه څوک طمع د وفا کا دغه طمع يي طاعون کنزه بيشکک
له باران سره هسے گلئ وورۍ چه هرزخم ئي بد تر دي تر توپک
که په چاۍ شفقت و مرحمت دی ظلم جور به ئے تیرے دي تر ازبک
مور به نه شي هيڅ سړے بے قناعت که ئے خونه دي په سیم و په زر ډک
بیا به نه موي کمال بے کمینئ که خیمه ئي دي د عرش د پاسه لک
که جهان په نور عالم باندي فراخ دے په تنگ چشم باندي تنګ شي له چشمک
دوے دهر په پایا نوکښ آب نشته که ئي غواړي تر سما د تر سمک
ترخه اوبه د عاشق آب و نمک دی خدائے دِ نه کا څوک بي آب و بي نمک
دا د یارانے اندیښنے نه کړه رحمانه
د دنیا چارے په تله دي ترهٔ مک

چه په زره مې تورلحد شي د خپل خاک بے مزه مې شي هم خوب هم مې خوراک
چه د خوب او د خوراک مزه شي ورکه نورله مرګه برابرشي هغه ژواک
غلط وائي چه څوک عمر ورته وائي هغه عمر چه تيريږي په پخساک
نن سپيره په خاورو وکه خوله به ستريم چه آخرم دا خوراک دی دا پوشاک
څانئ لري که څان ژوندے په مرګ نبض کړم چه مې پس له مرګ ځانے دے یو مغاک
گویا شوی دی هغه چه سندني دی زه پخوا تر هلاکت یم هلاک
زره چه روغ وی ګريوان کله خیرا دي شي له ګريوان معلوميږي د زره چاک
نن و ځلئ و جامه هله پاک بکار دی چه پرومبي شي چا زړه له غیره پاک
سړے بویه چه درون بیرون یې یو وی نه هغه چه بیرون زردی درون لاک

له سري غرض واړه سري خوبن دي　　نه چه سر کښ ئې طره دی یا مسواک

د دنیا چارے همه واړه فاني دي　　خوک یو دده ورځې خوشحال دی خوک غمناک

په ساعت کښ خوک خوشحال کا خوک غمناک کا　　دا خو یو نه همیشه دی دا افلاک

چه څه کاندی واړه خدائی دی نور څه نشته
رحمن څه دی څه ئې واک څه یئې ادراک

زړه مې بې خپل نګاره آرام نه کړ　　کامرانی راځنه غواړی ناکام نه کړ

بې ناکامه زیست محال دے په دنیا کښ　　دکوم اس په خوله کښ دخل لګام نه کړ

د آسمان ما نړئی به هم په قرار نه وی　　سالک څکه قصد د قصر د بام نه کړ

کاه یئې کښینوی په تخت کله په خاورو　　زمانه د رضا دهیچا مدام نه کړ

بې له سرو چه ازاده خدائے پیدا کړه　　ترکی څکه دهیچا ته سلام نه کړ

کوه و دشت هم دخزان له غمه ریبن دی　　څکه زړکه د چمن ته خرام نه کړ

چا چه سر دی په سجده و یار ته ایښی　　دوباره له دے سجوده قیام نه کړ

چه ئې کړه ده دیار په لوری لو ښتی　　لکه بحر هسے دروی مقام نه کړ

نشستن د عاشق نشته لکه شمع　　هر صورت د عشق په اور کښ تمام نه کړ

چه محفوظ وی په تش بوی د مهرویانو　　هغه فکر د بوسے د پیغام نه کړ

چه لذت ئې د سرو شونډو دی مړندے　　نوره مینه د شرابو په جام نه کړ

په هغو د لعلو لبو مئ حرام دي　　څوک دا نور لذت په خپل حرام نه کړ

رحمن هسے د خپل یار ته بې محبت دی
لکه څوک چه صاحب ته غلام نه کړ

زما د بڼه چه دا هسے شست و شو کړ　　دا محنت واړه زما د مخ ابرو و کړ

د عاشق د سینے چاک به ورځکند شي　　که څوک سر و خپل ګریوان ونه فرو کړ

تل مخ دی تر خوبانو پورے ولي　　عاشق په دچا او بڼکے په شستشو کړ

د عشق اور چه شمع خود په سر قبول کړه　　پروانه به څه محبت د ځان په سوکړ

ګل څه نه وائی چه غرق په وینو نات دی　　بلبل څه لره بیځایه ګفتګو کړ

زړه که مړک غواړم بې یاره خو ګرم نه یم　　جدائی سرے په ځان پورے په کو کړ

معشوقي په محنت نه دي چا موندلي
مګر خدايې په رحمن باندې پېرزو کړ

چه خېمه يې د سيلاب په مخ شوه لګه
د حباب تماشه ګوره تر د مړګ

هيڅ پکار نه ده ويسا د پانړ په سورې
لا تر لاندې دي د خولګو کوډ نګ

داد لاندې به همه واره چيت پيت شي
مګر سر دي چا ګېنلي تر فلک

چه په اصل خدای نسکور دي پيدا کړې
څوک به څه خوري دے د هر له خانګ

چه دښمن ئې وي له دوست اړ ورے
د هغه احتياط بويه له کومک

راشه واچوه د نفس وخوله ته خاوره
څو د نه ده خوله د ګور په خاورو ډک

هرچه ډک يې د ګور په خاورو خوله شي
په هغه به دي حرامه نوره څڅک

که نور څوک تبارکي کا شبله نوره
د رحمن وته خپل يار دي تبارک

څو يو خلق يې تاراج په جفا نه کړ
يار له ياره سره مهربانه نه کړ

که ئې سر په بوسه درکرم زه پوهيږم
چه قبول به د غه عجز زما نه کړ

چه په خپله رضا تللي مادر زاد وي
هغه هيچرې د نورو رضا نه ک

څوک خپله مدعا حاصله نه وي
مهربان په خوله د خضر سوا نه ک

که ئې سل ځله دُعا کوم په غم
ګوشې وهرش دد عا کو په دعا نه ک

که هومره آتشين پېے د کا زم
يکه سرود خزانه پرواد نه ک

که رحمن په عاشقۍ کښ آرام غواړي
دا خو دا په نارواکا روا نه کړ

که په هجر کښ څوک ما پوښتي له حاله
حال خو دا دی چه ناتوان يم بې مجاله

زه د يار په ديدن څکه شتابي کړم
چه د عمر بقا نه وينم تر کاله

چه تر حسن تر جمال ئې زار نه شم
شرمنده يم د خوبانو تر جماله

ته د ماته نصيحت مه کړه ناصحه
عشق بې نياز دي له ثواب له وباله

بې د خپل آشنا د حسن له تعريف
هيڅ مې مه پوښته له نوره تيل و قاله

نيا په آخرت مې د خدای نه کا
بې نصيب د مهربانو له وصاله

که یار سر په دیدن غواړی مه جاړ دوزه
د غه حکم رحمٰن کړیدے دلالَ

ما چه ستر گے و کړم رُخ ته د اړ ولِ — په هغو ستر گوم دینی وڅړلِ
د عمل جزا م بیا مرنده سبر حقه — دا دستور دی چه کړی هغه اخلِ
تر ټمزوني یو په سل زړه قاتل دی — تل چرے توره په کاڼری تیره دل
خود کرده په څه تاوان له چانه غواړی — چه ئے غوځ په خپل تیغ کړو پینے خپل
مالا مړک د اتا په مینه کښ هاله کید — چه گدا د باد شاهی لاف و هلِ
له خوبانو نه به څوک څه وفا غواړی — سرو کله د کښمش میوه نیولِ
په دربارِ سنها سی شه ورته کښینه — تا د په تا د دَ سرو ینته ایرے مبنلِ
که د فتر د خپل قسمت د چا په لاس وی — بدے بخرے به چا کله قبلولِ
چه نیکۍ د ر کوله و نیکا نو — دے بدانو څه بدی نه وه غوښتلِ
څوک له خاور وایرو پاڅوی تخت ور کړی — څوک له تخت د ایرو په ویران ولِ
شا چه نیت د آشنایۍ نه وه صنمَ — د رحمان ستر گے ږ و لے نهٔ گنډلِ

دا زل په ورځ دَ بخر وجاری وه
اے رحمانه چا با ښیلو دی چا گټل

بیلتا نهٔ دِ هسے خوار کړو زما دل — چه له ځانه ئې ویزار کړو زما دل
عاشقۍ هره داغونه دی مړا ښی — چه تمام ئې لا له زار کړو زما دل
چه د زلفو په کمند سره دِ راکیښ — په بلاد دِ گرفتار کړو زما دل
لاس و پښه د خلقو نیسی دعا غواړی — مینے هسے منت بار کړو زما دل
بے سبب چا آزار موند لے نهٔ دے — تا په څه سبب آزار کړو زما دل

زهٔ رحمٰن خو منت بار دَ عاشقۍ یم
چه مین ئې په دلدار کړو زما دل

چه له نازه پوشیده لری چشمان خپل — څه به وینی مقتولان د مظلومان خپل
چه بنګخل راته په قهر قهر کا ندی — دالا وګڼړی په ځان باندِ احسان خپل
گفتگو په اشارت کاندِ له نازه — که اسم د چا اخلی به زبان خپل

په ګریوان باندې چه تک وهي غوتې ! — عاشق کیباسي لا سونه په ګریوان څېل
خریدار ئې له حیرت بې شعور شي — چه د حُسن رخت څرګند کا په دکان څېل
چه خپل مخ په آئینه کښ ور څرګند شي — خود بخپله سرفرود کاندې په ځان خپل
چه هر څوک يې عاشقي وته هوس کا — ګویا لوټي کا په دین او په ایمان خپل
هیڅ صرفه د چا په سرو په مال نه کا — مالېدلي دي بخپله مطلوبان خپل
مجنون مثل د عاشقۍ هاله خپل کړ — چه په او ر باندې يې وسوه خان و مان خپل

هیڅ دستر کو غږ د لو خوند يې نه وي
چه رحمٰن په سترګو نه ويني جانان خپل

څو تر مینځ ورانه نه کړي د تن پول — وبه نه رسي تر خدائ و تر رسولؑ
خدائ وته دين دنيا په غوره کېښود — تا دنیا کړه په دا دواړه کښ قبول
تر حرص په هورته بله بلا نشته — دا بلا دې ستا په خونه شوه نزول
يو ساعت د خدائ په ذکر مشغول نه شوې — تمام عمر د خپل ځان په غم مشغول
چه باقي زندګاني په لنا سپوري — ځان به کوم دانش دانا بولي مجهول
له خالق رو ګردان شوي و مخلوق ته — بيا وځان ته عاقل وائې نا معقول
نصيحت لکه هلک در باندې تريخ دي — د دنيا په شيريني يې مملول

چه رحمٰن غوندې خورسند نه شي په نول کښ
خلاص به نه شي په هيڅ رنګ د زړه له نول

چه ديار په درود غم کښ شادمان يم — لکه ګل د پريشانۍ په وخت خندان يم
ته زماوي کښې نه نظر مه کړه — خدائ ساتلې لکه ګنج په بيابان يم
لکه ونه د ځنګل په ميوه سپر ده — څو کيدا ر په هر نفس د خپل کار روان يم
يو وينته م د صورت بې عشقه نه ري — لکه لعل د در په غاړه د خوبان يم
د وصال مرغه دا ربنګو د انوار کړه — په ويرانه د ويرانۍ کښ اباد ان يم
د کاملي عقيدې له بر کت — د دوښي پغاره ناست شاجهان يم
روشنائي م په طلب کښ ښخوه حاصله — شپه او ورځ لکه آفتاب په لار روان يم
چه صفت د تورو زلفو د آشنا کړم — بلي سر په لويه لار د هندوستان يم

بے مئین مې هیڅ حال د صورت نشته — لکه بې مال د متاع تش دکان یم
د هوس بلبل دیار را باندې نه کا — د انلاس په کبل دکې د خزان یم
دلبرانو وته خاک تر تلی لاندی — دده نور جهان په سر لکه آسمان یم
چه دیار په دیدن سرو مال نبند م — خلقو دا ورځ زه هغه عبد الرحمن یم

په هر دم کښ نوے نوے تماشا کړم
زه رحمن د خدائ د کرو وته حیران یم

په بنه خوئ له بد خواهانو بې پروا یم — په نرمئ لکه اوبه د اور سزا یم
د هر چا ته په خپل شکل ځرګند سېږم — آئینه غوندې بې رویه بې ریا یم
قناعت مې تر خرقې لاندې اطلس دی — پټ د درست جهان باد شاه ظاهر ګدا یم
د غنچې په څیر په سل ژبو خاموش یم — لکه بوئ هسې په پټه خوله ګویا یم
په ژړا مې د خپل یار دیدن حاصل کړو — د شبنم په څیر له ګل سره یکتا یم
هم په دا سپینو جامو به معلومیږم — لکه ابر هم ګوهر هم دریا یم
د دا زعم مې حاصل شه له راستئ — لکه سرو مدام سبز و تازه پا یم

که چا لار د عاشقئ ده ورکه کړے
زه رحمن د ګمراها نو رهنما یم

که هزار رحله نزدے د زړه په یاد یم — زه چه یار په ستر ګو نه وینم نابنا د یم
که یار سل ځله وعدے د وصال وکه — زه له ویرے تلوسے بې اعتقا د یم
په جفا د په وفائ لا رغه نه شی — په حذر د ناز پرور په کړی دا د یم
د بے نیا زو په نیاز غماسید د کړو دي — زه پرون سلطان خسرو یم نن فرها د یم
که دیار د لاسه اور را باندې سل دی — لکه شمع مستقیم په خپل استاد یم
بې مینځ قراری را باندې زوکړ دي — شیدا د ورځ په حرکت کښ لکه باد یم
که همه عمر مې یار په غیږ کښ ناست وی — زه له غمه به د هجر په فریا د یم
یو زمان مې زړه مراد مونده نه دے — پیدا کړے خدائ په اصل کښ نامراد یم
د وصال په یو دکال مګر بر پا ئې شم — د هغتې په هجر هسې بې بنیا د یم
چه دې نوره نتیجه نشته بے غمه — حق حیران د عاشقئ په داد یم

په وصال کښې مې د هجر ضعف نه ده    ادې حیران متحیر په دا ښاد یم

بې له عشقه چه مې پړی شي د پوزې    کنړه نور د جنګې تېده آزاد یم

که مې پېرې که مې پلورې چاره نشته

زه رحمن د بنایته خانه زاد یم

زه دیار په درد و غم کښې غرقاب خوښ یم    په دا درد کښې بې طاقت و بې تاب خوښ یم

که د وبېږم په اور کښې په اور سوزم    د سرو شونډو و په آتش و په آب خوښ یم

چه دیار د خط و خال نښې پکښې وي    زوړند سر په مطالعه د کتاب خوښ یم

تر دا پوچه گفتگو چې زه غلې اورم    په نغمه په ترانه د رباب خوښ یم

دیار ستر نا قبول عبادت زه    د ساقي په مېو مست و خراب خوښ یم

چه نه علم نه تسبیح نه تلاوت دی    له دې هسې بېدارۍ په خواب خوښ یم

د طوبۍ د ولې سورې مې خوښ نه دي    شاد مخ په لمبو سوي کباب خوښ یم

خاموشي که هر څو لويه مرتبه ده    زه له یار سره په سوال و جواب خوښ یم

دیار د ېرې غم خوارۍ یم عاجز کړې

رحمن ځکه په خوردن د شراب خوښ یم

صبح و شام مې لاس نیولي دي دعا کړم    خواست له خدایه ستا د مهر و وفا کړم

هیڅ د دروغ رښتیا مې نه زده که باور کړې    ستا د پاره هم دروغ و هم رښتیا کړم

دا ره تا ته که خندول که ژړول کړې    زه بېچاره نه خندا نه ژړا کړم

که ته نه یې یارې وایه را ته څوک دي    زه دا هسې لیونی د مجنون چا کړم

خوب خندا د بېلتانه په زمکه نشته    څه آرام به په دا دشت کربلا کړم

هره ورځ چه مې تېرېږي ستا په غم کښې    زه په هره ورځ پوهېږم چه غزا کړم

بې وېښته مې د صورت کوږ شوې نه دې    هسې رنګ د پټ پنهم په زړه ادا کړم

زړه که بوږي مې خوتالره درکړي    مکر نور ولره نور زړه نه پیدا کړم

چه به واغوست سرو پائې د عاشقۍ

زه رحمن د مه سرو پائې سر و پا کړم

دا ستا درد به په هزار درمان ورنه کړم    دا نسته به د غه سود په زیان ورنه کړم

که څوک را کاندې دُنیا و عقبیٰ دواړه
عاشقي به د دې په اِن و آن ورنه کړم

که مې چېرې لاس د استا په بوسه بر شي
د انعمت به د جنت په خوان ورنه کړم

څو مې تیغ په پهلو نه دی لګېدلے
ستا پهلو به د رقیب آسان ورنه کړم

که یو ځل مې د استا زلفې په لاس کېبوزي
یو وېښته به دې په درست جهان ورنه کړم

څو نه وینم ستا سترګې که خداے کړه
عزرائیل لره به همره ځان ورنه کړم

معشوق د عاشقانو دین ایمان دي
زه به چا لره خپل دین ایمان ورنه کړم

ستا زلفو پورې نورې زلفې څه دي
په خاشاک به د چمن ریحان ورنه کړم

په رحمٰن د استا د لبو مئې حرام دی
څو د خپلو دینو جام تاوان ورنه کړم

دا یو څه رنګ ژوندون دے نه پوهېږم
خواب و خیال دے که افسون مے نه پوهېږم

جام د مېو چه د ځان په وینو مومم
تر لال که جګرخون دے نه پوهېږم

د پتنګ او د بلبل ترمیان حیران یم
مخ دې اور دی که ګلګون دی نه پوهېږم

په شانه سره دې تار د زلفو بیل شه
که غوټې شوے مې تارون دے نه پوهېږم

عشق په هسې رنګ مقام باندې قایم کړم
چه وصال دے که بېلتون دے نه پوهېږم

د خپل زړه وعلامت وته حیران یم
چه موښي دی که تارون دی نه پوهېږم

د رحمٰن چهره دے زېړه تر زعفران کړه
خداے دې زده عشق دی که طاعون دے نه پوهېږم

بیا دې نوی شراب څښلي دي پوهېږم
په رخسار دې ګل کړلي دي پوهېږم

که هزار حله لاس سره کړې په نکریزو
تا زما په وینو ولي دي پوهېږم

معرکه زما د مرګ ده نو رخصت نه ده
رقیبان چه تا پاسلي دي پوهېږم

څه حاجت دے چه دې خط په ملا لولم
چه زما په باب دې کښلي دي پوهېږم

ته خپل جور و جفا څه لره وائې ما ته
ما هغه واره لیدلي دي پوهېږم

چه رقیب او تا غوږونه وبله در ورد
ما هغه ساعت ژړلي دي پوهېږم

رقیبان خشکه تیري په رحمٰن کاندي
چه تا خوار پورې ښېرلي دي پوهېږم

پہ لیمہ کښې یم مدام — عکس گرزی د گلفام
توره سترگې یم گلگون شوه — په آرزو د گلاندام
بې د سترگو له خوناب — نه باده لوروم نه جام
په طلب دد لا رام کښې — ما ولیده نه آرام
زنخدان یې خدایه کوهی کړه — ورخو شیږم په هر گام
که یې خال د مخ غلام دے — زه غلام یم د غلام
که په عشق کښې ناکام وبردی — د ناکام دے زما کام
خوښ یم زه په عاشقۍ کښې — که نیک نام یم که بد نام
په یارۍ کښې یم قبول دی — ملامت د خاص و عام
دد عا به عوض غواړم — د خپل یار د خولې دشنام
ترنګبین لو به یې څار کړم — د غه خپل دعا سلام
تلخ گفتار یې راته خوږ دی — ترکیمس و ترسبا دام
هم هغه یم مسیحا دي — چه یې دا کاندے سلام
مخ د یار ماه تمام دی
رحمن ولیده تمام

څو به صبر په جفا د یار کړوم — څو به موم د تمر د مخ ته گرزوم
عاشقی او صبوری سره دروغ دی — زه د الافی په دروغ څه رنګ کوم
تر و ما ته نصیحت مه کړه ناصحه — زه د اخپل تخم خپل ځان لره کرم
ماخو زده چه مینه او درد خدائ مېن کړم — دا نسته خپرو ا ور ته آچوم
سررشته یم خدائ د یار په لاس کښې ورکړه — په هر لوری چې یم راکاږی پی ځم
د آشنا مینې راس زما گریوان دي — زه په دا کار کښې هیڅ عذر نه لرم
عاشقانو باندې حق د معشوق دے — حق به ولے په با صله مید لوم
ما چه فرض په خپل ځان کړو د یار مینه — تر وله فرض غاره څه رنګ غړوم
دا څه ژړند دے چه یار نه وینم په سترګو
زه رحمان په جهان سترګی غړوم

چه له مرګ بې پرواه يې په هر دم  دغه هسې غم ډېر دے په کوم غم

نور همه داره غمونه به ډېر شي  که يو ځل در باندې را شي دا ماتم

چه زخمي يې صبا نه مري په بېغ  مدت مرنده شي نن ساعت هغه مرهم

د مرهم طياري درلره بويه  چه لا نه يې د اجل په تيغ کرم

چه دتن له سرايه درومې توښه واخله  تره اسرايې په هورته سراي نشته محکم

ده لاره تله هسې آسان نه دي  مشکلات دي په هر دم په هر قدم

که دې ډېره شي له ظلم له ستم  ته هم مه کړه په هيچا باندې ستم

که امېد لرې له رحم او له کرم  ستا هم بويه په هرچا باندې کرم

له هرچا سره چه کړې هغه به مومې  د هېڅ تخم ميوه نه درومي ب‌ر هم

اجر دا په د عمل په اندازه دي  دغه دواړه سره يو دي هم درهم

اوس ده ستا رضا نيکي کړې که بدي کړې  نېک و بد دواړه کښلي شي په قلم

خدائې د رزق په ذمه ده هېڅ مه هلکه  ترسري د سري رزق دی مقدم

که کنه چه په حرص سره زيات شي  زيات به نه شي ديوے ستنې ترسم

که هزار رنګ وحرص و تردد کړې  د قسمت شوې به نه کړې زيات وکم

د پرهوا د حرص مه کوه خدای ياد کړه  دے کافي دي ترهرب و تر عجم

په تا فرض عبادت د خپل څښتن دي  نه لګېږې خزانې ملک و حشم

ستوک د دوئې يوه ګړې درلره بس ده  نور همه دا په اسراف دے مسلم

له خوراک غرض قوت لا يموت دے  نه چه غوښې غوړي وريجې يا غنم

له پوشاک غرض خپر پستول دی  نه اطلس و ستلان تاج و علم

که حرص در باندې زور شي مرګ ورياد کړه  دا علاج دي دغه رنځ لره محکم

ولحد د تاريکۍ علاج به څه کړے  چه ته دلته کښې ديريږې له تور تم

غفلت هېڅ مناسب نه دي له پېنځ بزيرو  خوب روا نه دي په وخت د صبحدم

مار چه مور ږي له ورشي کوره سم شي  ته د کور غاړے لره راغلې نه شوې سم

خم قامت د دنيا کار کړے عمر واره  او په دوه رکعت نفلو نه شوې خم

ځان په خوا ترهغه وڅاره که مرد يې  چه په تا باندې ژړا کاندې نور عالم

نور عالم چې په تا ژاړي انصاف وکړه — بې انصاف ته په څه يې خوش خرم

کنډه نه وايم ته خود سترګې رنړې ګوره — کور دې خوړشه ته چار پائې يې که آدم

اې رحمانه لکه ته چې په خدائې کرم يې

بل به نه وي په جهان کښ هسې کرم

که په سر د هغه يار لره له لاس سنګ خورم — خدايه دې نه کا چې به بله خوا ته سنګ خورم

عاشقي ننګ و نام دي سره لرې — خو به غم واړه غم د نام و ننګ خورم

خدايه وما ته شيرين کړه تر شکرو — که د يار له لاس غشي د خدنګ خورم

د آشنا د بېلتانه په کاروبار کښ — هميشه په تندي توره د فرنګ خورم

نوکري د مخلوق و په عشق کښې — مهيني نه د بهلول نه دا ورنګ خورم

څښن لوګي م په سر چتر د دنيا تخت دي — ګرد غبار د خپل دولت لکه ملنګ خورم

هم به واچه له خودي شم بنګيو ده — د هجران په غم کښ لپي لپي بنګ خورم

لکه څوک چې نعمتونه د دنيا خوري — زه د يار د کوڅې خاورې پر ارنګ خورم

واړه زهر شي زما تر ستوني درومي — بې له ياره که همه لاچي لونګ خورم

زه رحمن به څر ژوندے په دنيا يم

چې په بلو لمبو څرخ لکه پتنګ خورم

که له مخ يوه خوا کړه حجابونه — خدايه به ورکا د خوبانو ثوابونه

که وي په يوه رنګ د هغه يار شي — که هزار شي په اسمان کښ آفتابونه

په ګرداب د زنخدان يې هسې غرق يم — هيڅوک مه غرق په هسې ګردابونه

لکه زه چې يې له غم په عذاب يم — خداي دې نه نږدي په چا هسې عذابونه

ګفتګو م هيڅ اثر ورباندې نه کا — که له غمه يې تصنيف کړم کتابونه

په يوه خواب م ردکا هزار ساله — هسې کاندې د سوالونو جوابونه

هيڅ پاياب د زن فريب يې مونده نشي — څوک به څه غواړي د بحر پايابونه

که بڼ سترګې د بله کيږدم راته وا في — په ياري کښ عالم ... خرابونه

مال و ملک يې همه وارد او به يوسي — د هغو چې ئي له ... وسيلابونه

ملا له پارسائي نه وو لاس و لوي — چې به ز... کړه طربيانو ربابونه

ارغواني جامې اخوندي رحمانه
بيائې جوړ کړه ستا دَ قتل اسبابون

راکوي دَ بيدردۍ پيغورونَ — بلوي مې په تندي باندې اورونَ
نور څه نشته داره څوبه دي د زړونو — چه وژلي شي د ترکو په تيغون
هر نګاه يې په رګښو د زړونو شير دي — هيشه را باندې آزمائي زورون
خدائې دې تور چاته د توره سترګو نه کا — عالمونه ورکيږي په تورون
يو حسن اور دې بل کړه په جهان کښ — په دا اور باندې د اوسوه ديرکورون
زه د يار په مينه غل کړم رقيبانو — ګنړه نور ئې ګوم را پورې دي تورون

د رحمٰن د عاشقۍ هسې غبز وشه
چه برپائې شو په هر ښهر کښ شورون

په خاطر مې غلبه شو ستا غمونَ — لږ د خدائې د پاره کيږده قدمون
څه خو تياس زماده پيروا و ښکو وکړه — چه په تن کښ مې وچړې دا رو ددنَ
هرچه تا په دم ژوندي دي نه رغيږي — که بې تا په ځان پوکي هزار دمون
که هزار هزار دمونه په ځان پوکا — نور به نه په دمونو قسمتون
له قسمته خلاصيده د هيچا نشته — که داخل شي د مکې په حرمون
سر يې کاږه په کوشش تر ځايه رسي — خو د خدائې د لورې نه د وکرمون
چه تو انګر د قناعت په خزانه شي — نور به څه کاندې دينارو درمون

قسم خوري له خوبانو بيائې مات کا
څه باور دے دَ رحمٰن په قسمون

ژوندي کاندي دَ دُنيا کاروبارون — په مرد پريوانه دَ خاورو انبارون
څوک سر تور پيښي ابله خاور دلره دروي — چا کاږه دي پيرانيني دستارون
نه استوګنه دَ دوه روښږ وسره نه شي — بلکه اخلي يو تر بله آزارون
ديوې ګڼې له ښاخ پيدا کيږي — په چمن کښ هم ګلونه هم ښارون
همه خلق هره تريخ له دنيا دروي — چي ئې نه په چا حساب شي نه شمارون
يو وار دي په هر چا باندې تيريږي — د پيرلي له مخ دوري بارانون

ډېر له سره م توکي بازار کي ستېر دي　　څوک دِ نۀ کا په ما تېغ و بازارډون

جدائي دَ آشنایانو هر دم کا ندي

په رحمٰن باندِ د تورو ګذاروڼ

دریغه ګُلیندے یو ځل هغه مخونَ　　چه دیا زلزي مژګان د رازندون

دیا زند دراز مژګان درازي زلفي　　ورپه شونډېه دره خوله داره غابون

دا سمان ستوري تيه په ترے قربان کړم　　هم دَ زمکے په سر دا په سره ګلونَ

چه ئې ووینم په مخ م اوښکے دروې　　د پسرلي دَ مخ وروري باراڼون

که یو ځل ئې مخ ووینم په سترګو　　ما په زړه کښ قبول کړي دي نذرون

د هجران په شپه سورکښ راته سور ورځي　　یو زمان م باندِ نۀ لګي ارخون

چه په پېښوانګو دِ زلفِ زانګي　　ښاماران دي دَ چنډ نرو په ښاخون

که خدائے غم دَ جدایئ درته آسان کړه

و رحمٰن وته آسان دي نور غمون

که ستا خپل سپه روئي نۀ دي د ښمن　　آئینه زما د زړۀ نۀ ده ښخنَ

تۀ چه ما وته دَ غیب په نظر ګورے　　دغه وار په غیب ستا دي اے غیب ژن

خپل صورت په آئینه کښ هر څوک ګوري　　که چهره دَ چا صفا ده که ږیرن

چه هار ي د هلال خور په ناصح بولي　　د ښو خلقو بد ګوئي نۀ ده ممکن

تۀ چه بد له بله وائې زۀ دِ ډېر بېزم　　چرے خپله بدي نۀ کړے معین

ترهغو به ورمې ستا غیب څرګند شي　　چه هر چا وته دِ کړیده خندند

هرچه څۀ تخم کره هغه به یو سے　　خپله خپله مېوه نیسي هر دوُن

که له خپله غیب ځان ژغورے رحمان

دَ هیچاله غیب مه کوه پو ښتن

ما دِ زۀ به نۀ کړم په خوبانو باندِ مین　　مینه د خوبانو رچوي د صورت وین

خدائي زما په بخره عاشقي کړه له ازله　　خوښ یم په دا بخره که ترخه ده که شیرین

زهر دي که تند دي هم په خپله خوله څرګند دي　　نۀ موي څوک خوند ذیل د خولې دا نګبین

زمکه هغه سوزي چه په سر ئے اور بلیږي　　دروغه خلقه شوه د رنځور رو تماش بین

بې نو به زه نه شي په تش دا د کوږ د کلي　　هر دبو به چه داخلي د غم پېټې له غمگين

نور عالم به څه کړم زه مريد د هغه کس يم　　هر چه ماورا کا يو پيغام له نازنين

څو به سوک په سترگو غړوم له هسې غمه　　څو به زه تل څاڅي د غم اوښکې له آستين

سر د رحمن دردمې د هجران په تيره توره

ته يې نگهبان شې يا اله العلمين

چرته ديار شونډې چرته غم د دل و جان　　چرته کوتې لال او چرته لعل د بدخشان

پاک و منزه دي عشق د نظر له خاصيت　　چرته چاه د کيهه چرته چاه د زنخدان

لږ تفاوت نه دے د رندۍ د زاهدۍ　　چرته زلفې کږونه چرته کونډې يتيمان

را به بيړه توڼ دي چه څوک دين په دنيا پلوري　　چرته ټيکه وړځې چرته عمر جاودان

زار شه د هوا او حرص خيال ترتنا عته　　چرته ملک د مصر چرته ده غلامان

نه شي د خانانو د مشنگو سره کلي

چرته عزيز خان چرته ملنگ عبدالرحمن

که پښوا تر آشنائي نه وي بيلتون　　ما به نه وه له چا کړې پيوستون

چه زه يار په سترگو وليد ما گمان کړه　　هم په دا ساعت زه بيا مونده ژوندون

په نيمگړي دا د خبر د ملک نه وم　　چه به بيا شي په ستنه را څخه ستون

ن ساعت چه له دې حاله خبردار شوم　　سکه ترن ورځې بهتره ود پرون

هر زخمت چه په ما راغي شکرانه کړم　　عاشقي تر هسې حده کړم زبون

اوس که لاس زه وبله مرزم هيڅ سود نه کا　　هغه چاره چه له لاس شوه بيرون

مکه عمر په غلو درم آسمان ځلبين ی　　محبت يې له حجاب کړم بيرون

چا چه نه له بنه مخ را کوله　　اوس د سود په نيلي گرزي د گردون

په دا هسې حال کښ څرنگ صبوري شي　　چه دښمن دي کامراني کا ته محزون

که په صبر سره تور کا نري لعل کيږي　　لعل يې په دا هسې جگر خون

د دنيا هوس په ما باندې حرام شه　　د هوسي هسې کړم شپه په ميکتون

دريغ يو ځل هغه زما په حال شوے　　چه زما وته لوے صبر و سکون

و رحمن ته ځان هغه کړي آسمان شي　　چه دا ستا په غم کښ ناست دي سرنگون

که تر ولو سنته شاهان و سلطانان — هیڅ نیمګړې په ځا نه شه دا جهان
که هزار هزار فنا شي په یو دم کښ — بیا پیدا شي په یو دم کښ هزاران
د رفتن د آمدن حساب یې نشته — لکه بحر چه څپې یې بې پایان
یو دیل په غم نه نرم وی نه ګرم — هم د هغه زده چه ورنۍ وی په ځان
پیغمبر غوندې صاحب له دنیا تیر شه — دا دنیا ویرانه نه شوه په هجران
چه دا هسې نام لاندې شه تر خاورو ؟ — د ځایاد دی ماو ته غوندې سګان
که غلبیل کړم د تمامې دنیا خاورې — بیا به نه مومم دارا و شاه جهان
بوئې د نام د نشان ئې پاتې نه شه — چه دعوه یې کړه د نام و د نشان
که دروغ دایم نه ور شه نظر د کړه — د خپل پلار و د نیکه په ګورستان
چې ئې ته په دواړو سترګو ښکلو سې — کوره څه شو هغه خولې هغه لبان
چه مدام یې په قربان قربان سېلې — اوس دې غوږ در باندې وکاچه تریان

د رحمن و سوزان شعر ته حیران یم
چه یې اوربل کړه نه دې په دیوان

فراموش م کړه دا ستا په مینه ځان — ځان زاخته دی بلکه عمر جاودان
لکه زه چه ستا د در په خاورو خوښ یم — هم ره عیش وطرب نه لري شاهان
لکه زه چه ستا د غم پند و ښه اخلم — هم ره پند اختی نه شي پهلوان
هسې بې سروسامان یم ستا په عشق کښ — چه آګاه نه یم په سرو په سامان
هسې بې شرابو مست یم ستا په مینه — چه خبر نه یم له ځمکې له آسمان
دا به څرنګ شي چه ته د کال وعده کړې — په مانه تیریږي یې له یو زمان
تمامي عمر دې ستا په طلب ورک یم — لټوم دې په هر ښهر په بیابان

که له دره ئې شړې که ئې پریږدې ته
دیر مین دی ستا په مخ عبدالرحمن

ته چه هسې ګاه یې ترش ګاه ئې خندان — له عاشق سره کینه کړې که احسان
له احوال د ځانه زده چه به څه کړې — کله جور کله لطف کړې عیان
رنځ راحت د عاشقانو واړه ته یې — دا دروغ دی چه وصال دې یا هجران

هغه شونډې چه خوږې دي ترش کړو — له بنګنځلوئے عار نه کا عاشقان

رجوعات د ښائسته وُچا ته نه وي — هرګز نه وي سرکوزي د سروشان

د غه سے رنګ ښائسته لکه چه ستا دي — نشته دا رنګ ښائسته د هیڅ انسان

قصد ترهے حدّه ولے کړے ګلرخه — چه له ډیره نازه وژلي عاشقان

وهرچا وته چه ستا قوت د سیږي — هلته نه رسي قوت د درست جهان

ساله جوره زهره نه لري چه آه کا — که کشور د عاشقانو شي ویران

خوار حیران لکه عاشق مه ساله درده — خدائے دِ هیڅوک هسے نه کا خوار حیران

لکه دِ پردائي د وصل با حسرتونه — د غمه هسے د فرقت د مه سخت زندان

د رخسار نغښه دِ دائره د خورشید دي — چه ئے درست جهان نوره مه روښان

له هوس دِ هر ګل کړه خندا شوه — چه ئے ګلید ستا د حُسن ګلستان

کله وي چه نصیحت کاندي عاشق ته — که له حُسن دِ آګاه شي زاهدان

رنګ د ردئ دِ لري رنګ د سرو ګلونو — تورے غنچے دِ ښا خونه در ریحان

سیاهي د نوي خط دِ هسے ریب کا — لکه ښکلي داره توري د قرآن

وکومي ته چه لغزش کا کل خطر وي — کل حیرت دي د کومي ستا د زنخدان

که د ددو تجلي ده ډیره د سیره — د رتاریک شي په ظاهر ستا دندان

ته سلطان د ښائسته رو يئ دلبره — دا نور دا په ښائسته دي نوکران

که دا نور ښائسته ستوري وئیل کیږي — ته خورشید غوندې صورت لرے روښان

له هر چا چه ا ورېده شي دغه وائي — چه ښائست دِ ذره نه لري نقصان

در و لعل شو ویل در حمن څه که

چه د استاد لعلو شونډ وشو ګویان

شو به شمیرم زهٔ نمونه د هجران — همه ډیره وي لکه ریګ د بیابان

دسره د دښمنئ طاقت م نه وو — خدائي را پېښه دښمني کړه د آسمان

ګنځوک چه دا دښ باره به میږي کیږي دي — هسے زهٔ یم په خپل غم پورے ناتوان

لکه ا ورد دبیلتانه چه په ما دودي — چالید لی ګنږه ا ورد مه په دا شان

دیار غم به م هغه سره به شمار کړي — چه شمیرلي ئې ریښته وي د خپل ځان

که څوک وائي حال دِ څهٔ دی په هجران کښې　　په خاطر دِ تصور کړی دوزخیان
ناقرار روح مِ د یار په هوا والوت　　تش صورت مِ ځائے پاتې شو حیران
د یار دم مِ زړهٔ په غشو سترګو یوړه　　چه په عشق زما داعرش کاندِ ویران
عاشقئی يې ترهغه حده بیهوش کړم　　چه نه هوش لرم نه سرو نه سامان
لور په لور يې د تهمت په غونډو وشت شم　　ملامت را باندِ وائي درست جهان
چه دا حال در باندے نه وی ورغلی
په وصل به څه کړو هیږی رحمان

درکه عاشق شهٔ هم يې نوم هم يې نشان　　زړهٔ ئے هسے خوار کړم لکه خاک د بیابان
زړهٔ د حسن په کارکښ تیر تر سره هم تر مال مِ　　دریغ که په سر مِ دا مشکل که خدای آسان
کښیوتم د عشق په آدم خوړو ګردابو نو　　نه په ورانِدِ تلی شم نه په بیرته ګرځان
رنځ د عاشقئ چه زړهٔ ظاهر کړم و طبیب ته　　هیڅ ورلي نه شي طبیبان و حکیمان
راشه عاشقی مه کړه رحم نه او که نهٔ وی
تل په اوربه نشت يې که بادشاهي د جهان

خان سلطان ود ے جهان　　آخر دروی خوار حیران
د قضا په څیر ترلی　　په مثال د بند بیوان
شیرین خان ورځنه دروی　　نهٔ زور شی نه ئے توان
که شبندی مال و ملک واره　　هیڅ رنګ نه موی امان
نه ئه مل نه يې حامی وی　　درد يې ورشی بخیل ځان
درمانده ورته ولاړ وی　　وزیران وو کیلان
هیڅ دارو کولے نهٔ شی　　کوز کوز ګوری حکیمان
بادشاهی ئے پاتې کیږی　　زړهٔ يې چوی په ویرارمان
چه يې روح له تن بیل شی　　نور پرے ژاړی فرزندان
یو ساعت وربانِدِ ژاړی　　آخر صبر کړی خواران
بیا يې غسل له وا خلي　　په تخته باندِ عریان
په جامو يې خو شحالیږی　　مرده شوا و غاسلان

چه له تبره یې بازګشت شي — مال یې یوسي وارثان
په مسند یې دعوی کاندي — هم دوستان هم دښمنان
سهیلۍ یې تالا کاندي — هغه خپل مصاحبان
نوم نشان یې هسې ورک شي — لکه نه وي بې نشان
نه یې نقش پاتې کېږي — نه یې اسم په جهان
دا دنیا آب روان ده — نه شي نقش په آب روان
که هزار رنګ آبادي کا — نهایت خانه ویران
لکه باد هسې به تېر شي — هغه دور هغه دوران

دا بیان دور و دراز هسې
کوتاه قطع کرد رحمان

که هر څو په صحرا سر شوم هم په کلیو — بیا مې نه موند هیڅ خبر د هغې تللیو
خدایه زه کوم خواته لاړ له حال نه خبر شو — خبر نه یم د کرنګ د پر یو تللیو
له دې غم مې زړه چوي که څوک خبر دي — لږ پیام خبر وکړئ خدای سا تللیو
پس له دې به چرته دردمن ځای مرکوم دي — دا ته داسې د دنیا په سرۍ را غلیو
ګوندې ستا په مخ به زړه پسندیده شم — لاړ خدای ته ورته نیکۍ پسند ندیو

خبر نه یم چه په باب مې ګټلي څه دي
زه رحمن په اندېښنه یم له دې ښکلیو

تور لیمه مې د فراق په ژړا سپین شو — دوباره د زړه په وینو که رنګین شو
ما وې زه به لا دیدن کړم د یارانو — خبر نه یم چه یاران په کوچ یقین شو
چا پتنګ غوندې ځان را چاپېره وا ورته — څوک ژوندي لکه بلبل په آتشین شو
و مړه وته د مرګ خواري شوه ښیني — او ژوندي په ژوندون کښې اندوهګین شو
قضا پا هیا نو هسې لاس په تاخت کړه — چه پایمال هزار خسرو هزار شیرین شو
چه قدم یې په آسمان ایښود له نازه — هغه هسې ناز پرور زیر زمین شو
چه مدام یې د سنجاب د پاسه خوب کړه — اوس په زمکه بې بستره بې بالین شو
د رحمن خاطر به ولې پریشان نه دي — چه پریشان ورڅخه جمع همنشین شو

تاچه رنګ د میوو درکړو و لبانو — اور دِ پورې کړو په کوروٚ مئ خوارانو
چه دِ جوړه کړه لینده د کږو وروځو — خوبه ښکار کړی په حرم د غزالانو
چه دِ دام د زغیر په زلفو کښیښو د — معطر دِ کړه دماغ د دیوانګانو
رخسا چه دد خط غبار څرګند شه — سربلند شوه نن نم دٚ خاکسارانو
کا ده عشق داره بیرته ځی له نښې — زهٔ آزار کړم ستا کږو وکږو مشرکانو
چه زما دیار زمنځه جدائی کا — کانړې پریوتی په خونه دبدانو
کهٔ مې چرې خواست دخدای په درقبلیږی — سوال به زهٔ د غم کړم د مهوشانو
سور پیزوان دِ په سرو شونډو ډېرې زیب کا — لکه جیم په قلم ښکلی کاتبانو
دسرو تیک دِ شهزاده په جبین پروت دے — ښکلی خال دِ حاصل په بندیانو
د داره لیچه دِ دُ کښلی مصرې تورې — درپوهیږم سر به پریکړې دٚ خوارانو
ستا له غمٚ په ځان زرهٔ د رحمن سوزی
لکه شمع په زیارت دٚ شهیدانو

چه کوشتلی دی په تیغ ستادٚ چشمانو — سرحلقه دی دٚ جمله وٚ شهیدانو
ستا وصال د سرپریکړو دی دلبره — ژوندې نه مومی جنت دٚ مردکانو
د پیری سوری عاقل لره ضرر دی — دا مقام دے دٚ سرتور دِ دیوانګانو
په سرپوښ محل کښ نور دٚ آفتاب نه وی — دا دولت دی نازل شوې په داکیانو
هم په دا زماله ستر ګو وینی څښاځی — چه د نقش پکښ رنګ دے دٚ لبانو
مشکین خال په سرو لبو ډیرې زیب کا — لکه مُهر په مخزن د درمرجانو
ما سوری له یاره هر چه دی رحمن
داره کفن دی په دین دٚ عاشقانو

هر ساعت زما دٚ غوږ په تا وولو — د فلک لا سو نه څه شو تر ښکلو
هر و غم دٚ بلیتا نه را باندې راغی! — چه جدائی نه په خوله شی نه په کښلو
هغه سترګی چه نرګس د هم بادام دی — تیرې تورې دی زما په قتلولو
هغه شونډې چه شیرینی دی ترتندو — ما هیڅ فیض څه بیا نه موندلو ښکلو
دا کار هکا بزه بانړه او کړې وروځې — نور څه نه کا بی کږو کږو وهلو

پر شپه نوکی د عاشق په وینو سرے کړه — صبا پورے کړه نګریزے په منګلو
دا زما د قاتل لاس دی نه پوهیږم — که تر باغ وتلی بناخ دی د سرو ګلو
دریغ مرګ یې په دنیا کښ نیمه خواشوی — ښائسته ځنځي یې پرېښي د کُکلو

هسے بند شه په کمند د تورو زلفو
چه حیران یم د رحمن په خلاصولو

بیا دِ مخ دی چارو تلی څه بلا شوه — دا بلا له کومه لوری را پیدا شوه
دا زما په یار کښ هره وفا نشته — که دنیا دا ره بے مهره بے وفا شوه
چه یې هیڅ له خدایه ترس و ویره نه شي — په نصیب م یوه هسے دلربا شوه
چه ئے حُسن وته ګورم حیرانیږم — را ظهر ګنده یوه هسے تماشا شوه
څه د حدود حساب خبره نه ده — بې صبری م تر حساب زیاته لا شوه
قراری م په طلب یې کښ حرام شه — بې غمی م په مذهب کښ ناروا شوه
چه راکړلی م پرے غمی د دُعا وه — هغه ښه م و نه ویشته خطا شوه
لکه پوچ بادام بې مغزه بې حاصل — هسے پوچه بې حاصله م دُعا شوه
عاشقي چه م له خلقو په غلا غلا کړه — هغه غلا م په تمام جهان رسوا شوه
څه بهره به له نسیه معاملې مومم — چه م نقد په دروغو کښ نسیا شوه
در د بیر ته چارو توشه را ته پورے — په نصیب م بله نه وه دا وه دا شوه
یوه بخره هر سړي لره خدائے ورکړه — زما بخره آشنائی د خپل آشنا شوه
د تدبیر په دام په څشکه کښیوزی — معشوقه چه م په مثل د عنقا شوه
چه ئے زر کړو زیړ رخسار زما د خاورو — عاشقي نه وه په باب زما کیمیا شوه
څه حکمت د یار په سینه کښ خدائے کیښود — چه عاشق لره م درد شوه هم دوا شوه

د ابا ران نه دی چه ووری له آسمانه
د مرغانو په رحمن باندے ژړا شوه

هسے زړه یم یاره ستا په غم تازه — لکه وری هر ګیاه په نم تازه
سترګی وخیږم که یې وچی کړم له نمه — که م شی په دا ژړا صنم تازه
زړه به څه کړم د چا چارے بی له یاره — هر سړے دی په خپل ساه په دم تازه

د یار نوے نوے غم زیبږدی وصـل ــــ زخـوی سـری پـرهـر مرهم تـازه
که د زړهٔ له غم وچوی دنگیږمه شـړ ــــ کاتبان کا په چول قـلم تـازه

بیا ئیته یاران ګلونه دی رنجـن
بیتانهٔ کړه اکثر مړاوی کم تازه

د برغمی م تیرکړه بیهـوده پـه زمـانـه ــــ نو رد زما سروی او د ترکو آستانه
هیڅ م حاصل نه کړه په شیخئی وپه تقوی ــــ پس له دی م واړدی هرچه شی په میخانه
شیخ وشیخی ورد وظیفه وذکر فـکر ــــ زهٔ وساقی جام وباده چنګ و ترانـه
زهٔ زاهدانو ته حیران یم دوی و مـاتـه ــــ دیوانه بهٔ خندا وده بدبـوا ســنه
ګنج د عقل زار شه د عاشق تر شا خکی ادبو ــــ نه خرواړد عقل نه د عشق یـوه دانـه
تیر دیار نه لاس په مرګ د عاشقانـو ــــ هسے لذت که لکه د میو پـیمـانه
خداے له لړه به ورشم په سود د یار له مخ ــــ بل مقصود م نشته په کعبه پـه بتخانه
زهٔ له ویره مینے په تش بوی دیار شیدا یم ــــ تل دا وبوختوا وبهٔ لیزی دی بـهـانه
څنګه زاهد زهد کا د یوجنت د پـاره ــــ سربند لی نه شی په او ربل د جانانه
ګوره د منصور هسے په دار نه شی رحمانه ــــ مکړه دا د عشق خبرے مـتـے رندانه

بـل نام و نشان د عاشقئ نشته رحمانه
بے نام و نشان شه که یی غواړی نشانه

پـه حالت د عاشقانو نظر بویـه ــــ په زیارت د شهیدانو ګذر بویه
بے مرشده څوک خبر د مرید اخـلی ــــ غوږ په غم د فرزندانو پدر بویه
بے رهبره رسیده ویار ته ګران دی ــــ په کوڅه د مهرویانو رهـبر بویه
بے هنره چا دولت موندلے نه دے ــــ په خدمت د صاحبانو اثر بویه
تاله ستر کو م هر ګوره ملاحظه شی ــــ له دے هسے بیاه دلا نوحـذر بـویـه
نه چه ستر ګے خداے ملالی کړی د ترکو ــــ لږ په زړهٔ د ظالمانو اثر بـویـه
تا په داغ به هر یو زړهٔ مشرف نه شی ــــ دغه تاج د عاشقانو په سر بویـه

چه خبر د رحمان نه اخلی یار به کا
بادشاهان له ګدایانو خبر بویـه

مخ دیار شمس و قمر د ریواره یو دی
قد و سرو و صنوبر دریواره یو دی

حاجت نه لرم په شهد و په شکرو
لب دیار شهد و شکر د ریواره یو دی

که بی یاره په بستر د پاسه پروت یم
نار و خار وی دا بستر دریواره یو دی

چه یې در و هم دیوار و ته نظر کړم
باغ بوستان و دغه در دیواره یو دی

خدایه دیار له هجره هیڅوک خبر مه کړه
تاخت و تتل دا خبر دریواره یو دی

چه غبار یې د کوڅې را باندی راشي
دا غبار مشک و عنبر دریواره یو دی

هغه دم چه سر په در دمی له جهانه
توره خاوره سیم و زر د ریواره یو دی

قلندر چه پر ښتیا قلندری کړه
خان سلطان و قلندر دریواره یو دی

در د نه شي په پردی زړه که هیڅوک
کور و کر و مصر دریواره یو دی

چه د نه پکښ یو یار نه د آشنا دي
هغه ښهر عجر و بر دریواره یو دی

په دکان د نابینا و جوهر یانو
خر مهري لعل و ګوهر دریواره یو دی

پسران د غار زماله عشق نه کا
پک عاشق لیر پیر د ریواره یو دی

په سبب د ظالما نو حاکمانو
کوره دا داو پیښور دریواره یو دی

غزا د شوه کم خان ستایي و رحمن ته
بے هنره کاو و خر دریواره یو دی

ستاله غمه مې په مخ باندې ونے دی
لو یم رپو نښته له حاله چه و لی دي

زه په تاپسے موسی یم قارون نه یم
چه مطلب م غوا وغیلی یا ګلی دی

هغه کوړی نکه تادی په ما کړی
نکه کړې په مجنون باندې لیلی دی

نکه ما چه مصلی درپسی لنګ کړے
کوم ملنګ هسے لنګ کړے مصلی دی

بوی م ستا د وفا نه دی دا الوتي
ما چپله کړی خپله تسلی دی

نصیحت اثر په زړه د عاشق نه کا
که نه یادی زما پیری مسلی دی

که رحمن د عاشقئ په تیغ شهید شي
د جنت حورے همه وارد دلے دی

خنب م ستا د بنړ و غشی په سینه دی
پورا پورے م د تلی ترا ئینه دی

تل يې مخ دیار په مخ باندې وی اینبی
هغه زړونه چه بے رنګ آئینه دی

هسې نه چې زړهٔ مې ورخ پر تا شيدا يم — ستا غمونه مې په زړهٔ کښې ديرينه دي
لکه ستورے چې بريښنا کا په آسمان کښې — په تتهرم ستا داغونه نګينه دي
درته وايم چې له آه مې پرهيز کړه — د هغو چې پوشاکونه پشمينه دي
که دا ستا رخسار سوزانی لمبې نه وی — ولے کښې زما تور سوی نينه دي
څه به هم په صبحدم ګوري وچا ته — چې د سترګې په مئ مستے شينه دي
هغه سترګې چې پيدا کړے خدائے خونريزے — بے غضب په غضب او په کينه دي
شرابيان چې شراب مومي خوښ شومي — که منعم په اختر په ادينه دي

چې تمام د خپل جګر په وينو رنګ شه
د رحمان خبرے ځکه رنګينه دي

سپين رخسار و مشکين خال و بله صنم دي — يا محمود و اياز ناست سره همدم دي
که دې مخ په زلفو پټ شه باک مې نشته — د حيات او بد هم پټي په تورتم دي
ستا له زلفو له رخساره له سره شوندو — پيدا شوی شام شفق و صبحدم دي
په دهن کښې دې غابونه تجلی کا — يا غوټئ په غنچه کښې د شبنم دي
نه چې اوس زما زړهٔ غوښ ستا په غمزه دي — چاره غوښې له قديم سره په غم دي
بے ژړا چا ته نه ګوري سيه چشم — د نرګس فوهيده په جوی په نم دي
راحت نه دے چا موندلے بی زحمت — ستا جفا و وفا دواړه منقسم دي

ستا د حُسن د تعريف له برکت
د رحمٰن د شعر کوکے په عالم دي

کاشکے زړهٔ خاورے ايرے دا ستا د در وے — چې قدم دې هميشه زما په سر وے
خو به ګل زما ستا د بله مخ شوے — نور مې مرګ ستا د غشو په تتهر وے
تمام تن مې درنجو په ښير ادره وي — خو په ما د سترګو تور ديو خطر وے
په زير رنګ په سپينو اوښکو به ما بيا موند — که د ترکو ملاقات په سيم و زر وے
ملامت به په ما څه له دا يه شه — که دا ستا د دلبرئ نه خوک خبر وے
مرتبه که ستا د عشق شي ور څرګنده — ملائک به واړه وائي چې بشر وے
تماشا به زما هله ورنکاره شوه — که ته ما غوندې بيدل وزه دلبر وے

